




نوم : پلوشې (ژورلیدونه)

لیکوال : امین الله دریځ

خپرندوی : دانش خپرندویه ټولنه - پېښور - ۲۵۶۴۵۱۳

کال : فبروري / ۲۰۰۰

شمېر : ۱۰۰۰ ټوکه

کمپوزر : نجیب الله وصال

# سریزه

ژوند یو ستر ښوونځی دی. انسان په دغه ښوونځي کې هم زده کوونکی دی، هم ښوونکی. دلته د لوړتیا او پرمختګ لارلټول کېږي چې موخه او غوښتنه یې د پوهې او پېژندنې بشپړتیا او د ژوندانه نویوالی دی. انسان له ډېرې اوږدې مودې راهیسې پر دغه لار یونی او تر دې شیبې یې غوره او پر زړه پورې بریاوې هم ګټلې دي. د دغه بهیر په ترڅ کې هرځای او مهال داسې ژورانده ځېرې راپنځېدلي چې د ژوندانه هر اړخ یې ځېرلی او د چاپېریال لوښې او ځانګړتیاوې یې ځېرلې دي. سربېره پر دې، دوی د خپلو ځیرنو او څېړنو پایلې د ځانګړیو فلسفو او نړۍ لیدونو په چوکاټ کې د نورو د لارښوونې له پاره نړیوال فکري بهیر ته وړاندې کړي او په دې توګه یې د انسانیت پر وړاندې خپله نه هېرېدونکې دنده سرته رسولې ده. نننی نړیوال تمدن د همدغو اندونو له اوډنې رغېدلی او دا دی لا د ناتاکلي بشپړتیایي پړاو پر لوري، لودن، لاروهي.

دا به د هرچا له پاره یو ګټور کار وي، که واوري او پوه شي چې چا، چېرته او کله څه ویلي او دا وینا یې د انساني ژوندانه د سوکالۍ او لوړ انساني رغښت په لار کې څومره پرځای او ارزښتمنه ښکاري؟

دا دي د همدغه ار له مخې مې د نړۍ د ځینو نومیالیو د اند پلوشې او زما د خپلو ازمېښتونو او لیدونو لنډې بېلګې چې د ځینو برخو په پای کې راغلي؛ ګرانو لوستونکیو ته ډالۍ کړې، هیله ده چې له یوې خوا یې له نړیوال فکري، فرهنګي غورځنګ سره روږدي کړای شي او له بلې خوا یې د سترو انساني ارمانونو په بشپړېدو کې مرستندوی وي.

د همدې سپېڅلې غوښتنې د سرته رسېدلو په هیله. له دانش خپرندویې ټولنې. په ځانګړې توګه د هغې له مشر "ګران فرهنګپال اسدالله ساپي" نه مننه کوم چې له یوې خوایې زه ددغه زیار کاللو ته وهڅولم او له بل لوري یې د چاپ هر لګښت و کړاو ته هم په خوړه موسکا اوږه ورکړه.

مننه

۰۱ دریځ

# نیولیک

# ژوند

چوپه نــړۍ هدیــرې تــه ورتــه وي او د ژوندانــه غــړ تــرې نــه اورېدل کـېږي.

"حضرت علي ک"



که هوا ناپاکه ده، نــو څه وکــړو؟ آیـا اسـوېلی پــرېږدو؟

کانت



که راته وویل شي چــې نــن شــپه مــرې! وبــه وایم چــې د خــدای بــه همداسې خوښه وي! خــو خــدای مــه کــړه چــې څوک راتــه ووایــې: "ستا له لاسه یوه چاتــه بدمرغــي ورپــېښه شــوې ده"

"کانت"



د ژوندانــه د کړکــېچونــو د لــرې کولــو لپاره ښایــي د لنـډې لارې د لټولو پر ځای ســمه لار ولــټول شــي.

"ډاکټر شریعتي"



د ژوندانه پر ســتونزو بــرى مونــدل رښتينــې زړورتيــا ده.

"ناپليون"

ما يو كتاب او يو ښوونكى لاره. كتاب مې ژوند و. ښوونكى مې ازميښتونه دي.

"موسوليني"



ژوند تر هغې پورې تر مړيني ښه دي چې وېره او ډار په كې نه وي؛ ښوزلى او لوږې نه وي تريخ كړى او تېرې او تادا نه وي تياره كړى.

"محمد مسعود"



زما د ژوندانه منى راورسېد، غواړم د هغې ونې غوندې شم چې په يوه تكان دخوږو مېوو باران ترې ووري.

"بتهون"



كه د ژوندانه د كلك بنسټ په جوړولو كې د مودې له اوږدوالي څخه ونه ډار شوئ، د ژوندانه لوړتيا به مو له وريځو سره سيالي وكړي.



ژوند د بخت د لاس لانځكه نه ده، دا يوه ارزښتمنه شېبه ده چې ښايي ګټه ترې واخيستل شي.

"ډاكټر مارډن"



د انسان ژوند د كړنو له مخې شمېرل كېږي، نه د كلونو له مخې.

"اسمايلز"



ناهيلى ژوند و مرګ يو شان دي.

"اعتصام الملک"



د عادت ښكېل د ژوند وړ نه دى.

"تازى متل"

د تاکلې موخې له لرلو پرته ژوند بې خونده دی.

کولاني

***

هر لاروی د خپل یا نه پای ته تلوسه لري، خو د ژوند هغه (لاروی) نه! ځکه چې پای یې د مړینې ګړنګ دی.

"پوهاند ډاکټر زیار"

***

زما د ژوندانه وروستی هیله دا ده چې تر مړینې وروسته مې د ډبرو او پولادو پرځای په غوښینو زړونو کې نوم وکښل شي.

"پوهاند ډاکټر زیار"

***

انساني پرمختګونه د هغو زبر و ګړیو د اند و ژوند زېږنده دي چې تر خپل مهال، پېړۍ، پېړۍ له مخه زېږي او له همدې کبله ځوک ورته د همزولو او هممهالو په سترګه نه ګوري او لا لېوني یې بولي.

"پوهاند ډاکټر زیار"

***

د خوړلو له پاره ژوند مه کوه، وخوره چې ژوند وکړې.

"امریکایي متل"

***

ژوند لوبه ده او لوبه زده کول غواړي.

"حجازي"

***

ژوند ته که له هرې خوا نه وګورې، ښکلی دی.

"ګوېته"

***

ژوند سرتر پایه زده کړه او پرمختګ دی.

"لابولاید"

***

ژوند پرله پسې پلټون دی.

"لامارتین"

هغه چې زړه سوی زېږوي، ژوند زېږوي.

"وان ګوک"

❁❁❁

خلک د خپل ژوندانه تېروتنې سرپرسر کړي او چې یوه لویه بلا ترې جوړه شوه، بیا د تقدیر نوم پرې کېږدي.

"جان او لیودهاینو"

❁❁❁

که ژوند ډېر خه نه درکوي، مانایې دا ده چې ډېر خه مو ترې نه دي غوښتي.

"مارسل پیره وو"

❁❁❁

د نننې هنر موخه ژوند ده، نه ښکلا.

"ویکتور هوګو "

❁❁❁

هغه له ژوندانه نه ګیله من دی چې ناشونې غوښتنې لري.

"رنان"

❁❁❁

هرځای ښه ژوند جوړېدلی شي.

"مارک اورل"

❁❁❁

له ورکې مینې سره ژوند کول، تر بې مینې ژوند ښه دی.

"رابیندرانات ټاګور"

❁❁❁

نننی نړۍ هغه چا ته د ژوندانه لار ورکوي چې پر خپلو پښو درېدلی شي او تل د هرچا پرېکړې ته سر نه ټیټوي.

"امرسن"

❁❁❁

دا نړۍ یو موټی خاورې نه دي، دا د وسپنې یوه ټوټه ده چې انسان ته ښایي پرله پسې یې په ختک ووهي او په کلکو ګوزارونو ځان ته ځای په کې جوړ کړي.

"ډاکټر ماردن"

د هرې ورځې تبربدل موږ ته د ښو او بدو یو لوست و زده کړه ده او هره کړنه مو که کوچنی او بابېزه هم وي: ځانګړې نښې او پایلې لري، څکه وايي چې نري وېښته هم بې سیوري نه وي.

"اسمایلز"



تر دې لویه بدمرغي نه شته چې په ناخوالو کې د خوښیو شېبې رایادوو.

"دانته"



د ژوند مانا د هغه په ښکلا او ځواک کې ده.

"ماکسیم ګورکي"



څومره چې د ژوندانه لمر لویدیځ ته نیژدې کېږو، هیلې مو د سیوري غوندې اوږدېږي.

"ډاکټر یانګ"



تر هغه ژوند چې ښځه او شراب په کې نه وي، غوره ده چې شیطان مو له ځان سره بوځي.

"ګوېته"



هره ورځ ځان نوی کوه، بیا هم ځان نوی کوه، تل ځان نوی او تازه ساته.

"کنفوسیوس"



ژوند یو ښکلی کتاب دی، خو نالوستو ته ګټه نه لري.

"کارلوګد لدونی"



هیله د ژوندانه ولی (جرړه) ده، سره له دې چې دا ولی سوکه، سوکه ژوند سېزي، خو د ژوندانه ونه هم پرې ولاړه ده.

"نیل"

هرڅومره مې چې ژوند تېر کړي، لا نه پوهېږم چې هغه څه چې زموږ پلرونو ته ښه وو، موږ ته ښه نه دي

"سکار وايلډ"

⁂

آيا ژوند دومره ښاغلی او سوله دومره خوږه ده چې د ښکېلاک و زنځير په بيه وپېرودل شي؟

"پاتريک هانري"

⁂

راځئ شتمن ژوند وکړو، نه دا چې شتمن مړه شو.

"ډاکټر جانسن"

⁂

زما د ژوندانه تر ټولو خوږې شېبې هماغه وې چې په خوب کې تېرې شوې.

"بتهوون"

⁂

هغه څوک د ژوندانه دبري راز پېژني چې نه دي بريالي شوي.

"جان کولينس"

⁂

يوازې هغه څوک ماتې خوري چې هڅه او مبارزه نه کوي.

تامس بيلي الډريچ

⁂

له زوکړې او مړينې تېښته نه شته، يوازېنۍ چاره دا ده چې د دغو دواړو تر منځ له واټن نه ګټه واخلو.

"ژرژسانتايانا"

⁂

په ژوندانه کې تر ټولو بريالی هغه دی چې ښه ژوند يې کړی، ډېر يې خندلي او ډېره مينه يې کړې.

"سن آندرسن"

⁂

ژوند په موهله ښکلی او روښانه وي چې ښه وګڼئ، ښه وکړئ او ښه ووايئ.

"زردشت"

د ژوندانه د ستونزو د زغملو لپاره له کار، ښځې او ارمان سره مينه ولرئ.

"مارکوس آنا"

⁘⁘⁘

ويده وم، خوب مې وليد چې ژوند ښکلا ده، راويښ شوم وپوهېدم چې ژوند دنده ده.

"آلن هوپر"

⁘⁘⁘

د خپل زړه پر سر وليکئ چې هره ورځ د کال تر ټولو ښه ورځ ده.

"امرسن"

⁘⁘⁘

د ژوند مانا د ستونزو ګالل دي، ښه سړی له خپل نفس سره جنګېږي چې پرې واکمن شي.

"ناپيليون"

⁘⁘⁘

ژوند د زغملو نه دی، خو دا ټکی مه څرګندوئ.

"نيچه"

⁘⁘⁘

د ژوندانه د لوبې په پيل کې انسان تېروتونکي او په پای کې يې تېرويستونکی دی، يا په بله وينا د وري غوندې زېږي او د ګيدړ غوندې مري.

"ولتر"

⁘⁘⁘

زه د خوښۍ لپاره نړۍ ته نه يم راغلی، زه راغلی يم چې لوی کارونه سرته ورسوم.

"بتهوون"

⁘⁘⁘

د باد بهير ته مخامخ لاړې مه توکوه.

"نيچه"

⁘⁘⁘

له دار نه وېرېدل د ژوندانه لوېړنی لوست دی.

"امرسن"

ګانده (راتلونکي) د هغه څه ده چې هیله یې لري.

"مصطفی کمال اتاترک"

د انسان ژوند هغه هینداره ده چې ګټورې زده کړې پرې لیدلی شو.

"ناپلیون"

د ښه ژوند کولو لپاره ښایي د ژوندانه د پاسه اوسې، نو زده کړه چې تل پورته لاړ شې، زده کړه چې تل ښکته وګورې.

"نیچه"



# روغتیا

تر هغې چې درد زغملی شي، درمل مه خوره.

(حضرت محمد[ص])



که څوک روغ ژوند غواړي سهار دې ژر له خوبه پاڅي، سپک کالي دې واغوندي او په جنسي اړیکو کې دې منځلاری اوسي.

"حضرت علي[ک]"



د نړۍ لومړنی بې ساري ښېګڼه روغتیا، وروسته ښکلا ده، بیا هغه شتمني چې په رښتینولۍ او ښه نامه لاس ته راشي، او همدا راز له خو منلیو دوستانو سره د ځوانۍ له شېبو نه خوند اخیستل دي.

"سیموند"



که اروايي هوساینه غواړې ژوی مه وژنه.

"د چین و هندو فلسفه"



لږخوره چې ناروغ نه شې.

"جالینوس"



چې سپورت کوي درملو ته اړتیا نه لري.

"ابن سینا"

سپېڅلی سړی لږ خوري. لږ ښني او لږ ویدېږي.

"مهاویرا"

***

لږ خوړل خوندور او ډېر خوړل بې خونده وي.

"چیني متل"

***

ناروغ بدن د روغو ماغزو ځای نه دی.

***

پرله پسې جنسي اړیکې روغتیا له منځه وړي.

"خوشال خان ختک"

***

روغتیا نعمت دی.

"دري متل"

***

د روغتیا خاوند هیلې لري، د هیلو خاوند هرڅه لري.

"عربي متل"

***

په روغتیا کې د خوړو په خوند ښه پوهېږو.

"ارستو"

***

روغتیا ساتنه تر کار ارزښتمنه ده.

"پوشه"

***

کلک خواړه مه خورئ.

***

هره ورځ یوه منه خوره. ډاکټر ته به دې اړتیا نه وي.

"انګرېزي متل"

***

چې ډېر خورې، لږ خوړلو ته به اړ شې.

"اسپانوي متل"

***

سړېو ته لوګی تېرول، په خپله خوښه زهر خوړل دي.

"ډاکټر کرولیخ"

***

ایرانیان زړورتیا او د غریو روغوالی د زلمیانو ښکلا ګڼي او هغه کوي چې د سپورت له لارې لاپسې ښکلي شي.

"پلوتارک"



هغه څه چې د مزو، چرچو، بوختیاوو، هوا او هوسونو په ترڅ کې د هیڅا ورته پام نه دی، خو همدا چې لاړه او لرې شوه ارزښت یې څرګندېږي؛ پېژنئ؟ روغتیا ده!

"فریدریک"



ګلادستون وپوښتل شو: روغتیا مو څنګه ده؟ ویې ویل: دوه دېرش غاښونه لرم او هره ګوله دوه دېرش ځله جویم، لاغواړئ چې روغ نه اوسم؟



خلک د نرۍ د ښېګڼو د ناسم و نابرابره وېش په اړه ډېرې ګیلې کوي خو له ښه مرغه د ژوندانه د ښېګڼو او د هغه د سترو ښېنو په اړه هېڅډول توپیر نه شته او د پنځ (طبیعت) ورکړه ټولو ته یو شان ده چې تر ټولو ستره یې روغتیا او وخت دی.

حضرت علي[ک]



د انسان روغتیا ته بل هېڅ دومره تاوان نه پېښوي، لکه په ګېډه کې سرپرسر شوي خواړه.

"ابن سینا"



چې اروا کمزورې شي جسم هم نیمګړی کېږي او که جسمي ځواک ګډوډ شي اروا اغېزمنوي، نو هڅه وکړئ چې دواړه روغ وپیاوړي وي.

"زرتشت"



هرو، مرو به سپورت کوم که نه عقل به مې تباه شي.

"تولستوی"

په ذهني بوختياوو کې د بري لاس ته راوړلو او د اوږدې مودې کار کولو له پاره بنايي بدن غښتلی وي.

"آليوت"



چې روغتيا نه وي، د نړۍ ټول خوندونه هغو خوړو ښکاري اوبو ته ورته دي چې په زهر لړلې خوله کې تويږي.

"شوپنهاور"



روغ عقل په روغ بدن کې وي.



# پوهه

له زانګو نه تر ګوره د پوهې پــه لـټه کـې اوسـئ.

"حضرت محمد^ص^"



هغه پوهه چې ګټه ونـه لـري، هغـه خزانـه ده چـې لـګښت تـرې ونـه شي.

"حضرت محمد^ص^"



د ازمېښت ربړتينولي تــر ټولـو اندونـو او فلسـفه پېيلـو اوچتـه ده.

"موسوليني".



انسان په ښوونــه او روزنـه انسـان دی.

"سيد جمال الدين افغان"



هر ښوونځی مو چې پرانيســت د زنـدان يـو ور مـو وتـاړه.

"ويکتورهوګو"



ړانده تـه شـپه او ورځ يـوه ده.

پښتو متل



ناپوه مه وژنئ، ناپوهي يې ووژنئ.

"سيد جمال الدين افغان"

پوهــه خواک دی.



هغه څه چې د هـر څه تـر ټولو او هېرولـو وروستـه پـه مـاغزو کـې پاتې کېږي. پــېژندنــه (معرفـت) دی.

"ادوارد هريو"



تر نه پوهېدو، بــې اړتيـا پوهــېدل هـم ښه دي.

"سندکا"



له هغه ناپوه نه تښته چــې ځانتــه پــوه وايــي.



پـاګلان بـې ګټې بـوټي دي چـې پـه خپـل سـرراټوکېږي او کرلوتـــه اړتيا نه لــري.

"چکي متل"



تر ټولو هوښيار هغه دی چې له نــاپـوه نــه تښتــي.

(حضرت محمدص)



پوهــېدل ښه دي، کـــول لاښه.

"کايبل"



مړ پوه ژوندی، او ژونـدی نـاپـوه مـړ دی.

"حضرت علي ک"



هوښيار دا تمه نه لــري چــې څوک يــې وسـتايي.

"لاووځه"



هوښيار جګړه نــه کــوي.

"مهاويرا"



ناپوهــي لــوی درد دی.

"کارلايل"

يوازې همدومره پوهېږم چې هېڅ نه پوهېږم.

"سوكرات"

ښايي پوهه او ادب تل سره ملګري وي. بې پوهې ادب او هغه ليكنه چې پر پوهنيزو ښستونو ولاړه نه وي. تش ډول دی. له بلې خوا هغه پوهنيزه ليكنه چې ادبي ښكلا ونه لري، وچه، ترخه او بې خونده وي.

"اناتول فرانس"

د پوهې ور دې د هرچا پر مخ پرانيستی وي، هر چېرته چې انسان دی، هلته دې كتاب هم وي.

"ويكتورهوګو"

كه مسيح يو مړی را ژوندی كاوه، ښوونكی يو ملت را ژوندی كوي.



د ماشوم روزنه تر زېږېدو شل كاله مخكې پيل كړئ.

"ناپليون"



بې غوښتلو پوهېدل ناشوني دي.

"ګوستاولوبون"



تمرين د زده كړې مور ده.



پوهه نه تېروځي، خو پوهان تل تېروځي.

"اناتول فرانس"



هر مهال خپلې غوښتنې لري چې په پوهه بشپړېدای شي.

"شيخ محمد خياباني"



هر كتاب په يو ځل لوستلو ارزي.

"ماكسيم ګوركي"



کتاب هغه ښوونکی دی چې بې ډارولو مو روزي.
"بریتانوي پوه"



پوهې ته وزرونه مه ورکوئ، یو څه سرپ ورپورې وتړئ.
"بېکن"



له هغو لویانو سره چې څو پېړۍ پخوا له نړۍ نه تللي او اوس تر خاورو لاندې دي؛ د غږېدو او پېژندګلوۍ لنډه لار لوستل دي.
"دېکارت"



چې پوهېږي هغه څورېږي.
"پښتو مل"



هغه چې یو کتاب له منځه وړي، لکه یو انسان چې وژني او هغه چې یو انسان وژني، لکه ټوله نړۍ چې ووژني.
"مسولي"



د شلمې پېړۍ د تمدن ملا تیر، چاپ و کتاب دی.
"روزوېلت"



ځینې کتابونه د څکلو، ځینې د خوړلو او ځینې د ورو، ورو ژویلو دي.
"فرانسیس بیکن"



کتاب ښکلی ګلبڼ دی چې ګلان یې د لویانو له سینې نه راټوکېږي؛ د مړیو خبرې کوي او د ژوندیو ژبه ژباړي.
"جاحظ"



هسکې او پرتمینې ماڼۍ او اوچت واک لرل چې د لوستلو خوند په کې نه وي، تر یوې وړې جونګړې چې کتابونه او ورځپاڼې لري؛ ډېر ټیټ دي.
"ماکولي"



کتاب په خپل هېواد کې ښه یار او په پردي ښار کې ښه ملګری دی.

"جاحظ"



چې زموږ تر شاوخوا شیان له ګټې نه ولوېږي او بې ارزښته شي، بیا به نو د کتابونو ارزښت لا ښه وځلېږي.

"واشنګټون ایرونګ"



د یوه ملت د ارواوو، پوهې او اخلاقو د پېژندلو لپاره ټول هغه کتابونه چې په دغه ملت کې دود او خپاره دي؛ تر څېړنه لاندې ونیسئ.

"اسمایلز"



د لویانو او اتلانو د ژوند پېښو لوستل مو په یوه پټ ځواک د پرمختګ و اخلاقي بشپړتیا پر لوري هڅوي.

"دیزرائیلي"



دومره بېوزلي شوي وو چې په کور کې مو یوه کاچوغه او کاسه هم نه لرله، یوازېنی بخت مو دا و چې د پلار تر مړینې وروسته مو له هغه نه دوه کتابونه راته پاتې شول چې یو "اسمان ته د غوره سړي د رسېدو لار" او بل "پرهیزکاري او سپېڅلتیا" نومېده.

"یونیان"



که یوه ورځ کتاب راسره نه وي، له مینې نه به مې لېونتوب جوړ شي.

"فریدریک"



خوار و بې وزلي انسانان هم بې له کوم خنډه د لویانو له فکرونو سره غږېدای شي، ځکه ددغه مانیز بڼ د پرانیستلو کیلي "لوستل" دي، هر څوک چې لوستلای شي بې له دې چې دوره له لاړښود څخه مرسته وغواړي؛ هلته ورننوتلای شي.

"اسمایلز"



بې لوستلو دمه داسې مرګ دی، لکه انسان چې ژوندی ښخ شي.

"ماکسیم ګورکي"



هېڅکله داسې غم نه دی راغلی چې یوې ګړۍ لوستلو نه وي شړلی.

"مونتسکیو"



هغه څه چې تر شل کاله ازمېښت وروسته زده کېږي، سمه لوستنه یې په یوه کال کې رازده کوي.

"بریتانوي پوه"



هغه ځوانان چې ناځاپې یې یو کتاب لوستلی وي، کېدای شي چې هماغه یو کتاب یې بې لارې کړي، بیا نو د هغوی په اړه د یوه پوه دا وینا چې: "له هغه چا نه وېرېږم چې یو کتاب یې لوستلی وي" رښتینې کېږي.



که زموږ په هېواد کې هرې کورنۍ یو کوچنی کتابتون لرلای شوای، هرو، مرو به مو تولنیز ژوند پر بل مخ اوښتی وای او ملي هیلې او غوښتنې به مو خورا پورته لاړې وای.

"ډاکټر مارډن"



لوستل او نه کول، یوې کول او نه کرل دي.

"توله"



ته په یوه شپه کې دا کتاب لولې او ما یې په لیکلو کې د خپل سر وښته سپین کړل.

"وته"



هر کتاب یا لیکنه چې د ژر پای ته رسېدو په هیله په بیړه ولوستل شي، پوهې او اخلاقو ته تاوان پېښولای شي.

"ډاکټر ماردن"

که غواړئ چې له کتاب نه کتورې خبرې لاس ته راوړئ. د یوې کړې
څلورمه برخه لوستلو او درې نورې یې د هغه په اړه فکر کولو ته ورکړئ.

"ریچارد لوژالین"

❂❂❂

کتابونه پر نرۍ یا لږ تر لږه پر هغو قامونو چې لیک. لوست یې
زده وي؛ واکمني کوي! نور قامونه ارزښت نه لري.

"وېلتر"

❂❂❂

ناپوه ته چوپتیا ډېره غوره ده، خو که په دې پوهېدلای، ناپوه به نه و.

"سعدي"

❂❂❂

کتاب د انسان د سوکالۍ کلکه ستن ده.

"فریدریک"

❂❂❂

ستر کتاب هغه دی چې لوستونکي ستر کړي.

"ادوار دلوروا"

❂❂❂

ډېر ولولئ چې وپوهېږئ، چې هېڅ نه پوهېږئ.

"مونتسکیو"

❂❂❂

کتاب لوستل د غم شیبې په خوښۍ بدلوي.

"مونتسکیو"

❂❂❂

لوستل د ماغزو سپورت دی.

"ریشارد ستیل"

❂❂❂

د کتاب پاڼې داسې وازره دي چې اروا مو د رڼا پر لوري الوزوي.

"وېلتر"

❂❂❂

ځینې کتابونه ژور فکر نه غواړي، ځکه چې لیکوال یې په لیکلو کې
ژور فکر نه دی کړی.

کولتون

هغه کتاب چې د لوستلو وړ دی. د رانیولو هم دی.

"جان راسکن"



د لوستلو په ترخ کې له پوهانو سره غږېږم، خو چې لوستل نه وي، له ناپوهو او شدلو څخه ډډه نه کېږي.

"والو"



له یوه کتاب پلورونکي نه چا وپوښتل: له کتاب پلورنې نه دې څه زده کړل؟هغه وویل: هو! چې کتاب غواړي، پیسې نه لري، او چې پیسې لري کتاب نه غواړي.



دومره چې خلک په خپله شتمنی او پوهه تینګار کوي که همدومره یې د شتمنی او پوهې له پاره هڅه هم کولای، په نړۍ کې به وږی او ناپوه نه وپاتې.



فلسفه، رښتیا پالنه ده، نه له یوې ځانګړې اند پوهې او تګلارې سره مینه.



# هیله

ناهیلي کېږه مه، کېدای شي هغه وروستۍ کیلي چې په جیب کې دې ده، کولپ وارنځي.
"تروتي ویک"



هیله د هغو بدمرغو ملګرې ده چې د زماني د ساقي له لاسه یې د کرکې ګوټ څښلی دی.
"اعتصام الملک"



هغه چې د پېښو ښه اړخ ته په کتلو روږدی شوی، دارووړدتیا یې په کال کې تر زرولېرو ګټې غوره او ارزښتمنه ده.
"ډاکتر جانسون"



که د هیلو سراب هرڅومره غولوونکی وي، لږ تر لږه خو مو د ژوندانه پړاوهم په خوښۍ سره پای ته رسوي.



که دنن له غوسې سره د پرون رنځ او د سبا غم یوځای نه کړو، هغه که هرڅومره وي، وبه زغمل شي.
"هامرلینک"

هرخه ته مخکې تر پېښېدو کتل او لرلیدلرل ښه کار دی. خو راتلونکیو بدمرغیو ته نن ورځ غمجنېدل ښه نه دي. په هوا کې تر زندان جوړولو ولې ښکلې مانۍ نه جوړوئ.

"دیل کارنګي"



وړتیا لرل او نه رسېدل تر هغو رسېدو ښه دي چې وړتیا یې نه لرو.



هماغه هیله پر ځای اوسمه ده چې له لاسه مو پوره وي.

"حجازي"



هغه چې هیله له لاسه ورکوي، ډېر څه بایلي.

"اسپانوي متل"



د تشې او بې ځایه هیلې له لاسه ورکول، لوی بری دی.

"کسپیر"



که له انسان نه هیله او خوب واخیستل شي، د نړۍ پرمخ به تر هغه بل بدمرغه نه وي.

"کانت"



هیله هغه سراب دی چې که ورک شي، ټول به له تندې مره شو.

"حجازي"



هیله د بېوزلو ورځنۍ خواړه دي.

"هرشل"



تر وروستۍ سلګۍ پورې هیله من اوسه.

"انګرېزي متل"

د انسان هیلې برید نــه لـري.

"کندورسه"




ولې ژاړئ؟ بــری وغـواړئ!

"ستیفان ګرین"

هغه چې وړاندې نه ګوري، شاته پاتې کېږي.

نهیلی ژونـد د مـرګ همـلاری دی.

"اعتصام الملک"

هیله نیمــه سـوکالي ده.

"تورکي متل"

هیله روغتیا نــه رابــښي، خــو درد سړوي.

"مارسل آشار"

ښایـي لـه پوهـې او ځیرتیـا نـه کـار واخلــو، هغــه څه چــې پــرون ناشوني وو او نن ستونزمن دي، سبا بـه پـه خـوښۍ ومنـل شـي.

"ژول کامبون"

هغه چې غواړي په هیلو ژوندی پاتې شـي، لـه لـوږې بـه مـړ شـي.

"فرانکلن"

آه، یه د ژوندانــه هیلــو!

که تاسې نه وای او دغــه غمځپلـي ژونـد تــه مـو نـه خـاندلای، بشر به څنګه ژونــدی پـاتې وای.

"دشتي"

انسان په ناهیلۍ کــې هیلـه مـن دی.

اعتصام الملک

په اسمان کې د یوې توتې وربخ په لیدو. هرڅه ته تیارد او تورتم ویل نه دي په کار. بنایي د دغو لنډ مهالو وربخو تر شا مو هاغه رانه لمر ورنا ته هم پام وي.

"اسمایلز"



سکندر چې د یونان پاچا شو، خپله تولهٔ پلرنی شتمني یې د دوستانو تر منځ وویشله. "پردیکاس" وپوښته: ځان ته دې څه پرېښودل؟ هغه ځواب ورکړ: هیله! چې د انسان تر ټولو ستره شتمني ده!



د لښکر د بري تر ټولو ښه وسله ډاډ دی.

"کیخسرو"



# هوډ

هوډ د بــري لومړی آړ دی.

"د افغانستان پخوانی ولسمشر محمد داود"

⁂

انساني هـوډ د هغـه د برخليکونـو تـر ټولـو لوړ او ستر ځواک دی او د ښـکلا نړۍ ترې تـاووي.

"فيساغورس"

⁂

د دوه زړيو بری نه وي.

"ناپيليون"

⁂

که هوډمن يې چې يو څوک شې، يوه ځای ته به ورسيږې.

⁂

ما غوښتي وو چې يو څوک شم، دا دي نن مې ټول پېژني.

"آدولف هيتلر"

⁂

لـه بـده مرغـه، اوس يـوازې بـد چـاري اوتيـت خلـک پـه خپلـو کارونو کې له کلک هـوډ نـه کـار اخلـي.

"الفرد کاپو"

⁂

لا ماشوم وم چې د لويوالي هوډ راسره و.

"ويکتور هوګو"

په ختبو کې لوېدل ننګ نه دی. ننګ دا دی چې په کې پاتې شي

"آلماني متل"

❀❀❀

د پیاوړي هوډ په لرلو، د هرڅه خاوندان یاست.

"ګوېته"

❀❀❀

د هوډ خاوند ته هېڅ ناشوني نه دي.

"میرابو"

❀❀❀

د هوډ په مرسته له بدبختی او سستی سره وجنګېږئ.

"حضرت امیر[ع]"

❀❀❀

بې پروایي کمزوري ده.

"کولرل"

❀❀❀

پرله پسېوالی، موخه رالنډوي.

"شیللر"

❀❀❀

بری د هغوی وي چې تر نورو کلک دریځ لري.

"ناپیلیون"

❀❀❀

هوډ نیول تر هرڅه سخت دي.

"ناپیلیون"

❀❀❀

که د نیاو (عدالت) پلي کولو پر لار وکنځل شوئ یا مو تاوان ولید، خدای ته وګورئ مه خورېږئ؛ وخاندئ او خوښ اوسئ.

"ډاکټر ماردن"

❀❀❀

یوازې لوی رنځ دی چې لویوي مو.

"حضرت علي[ک]"

ـه به لومړي ګام کې برې لاس ته راتللای. هڅې نه به اړتیا نه وه.

"موریس میترلینک"



پرېږدئ! هره سختي چې غواړي یې، پر موږ دې یې راولي، که موږ د کلک غبرګون د ښودلو وړتیا ولرو نو دا سختي راته ګټوره ده.

"هرمز"



هوډ مارماهي دی، نیول یې آسان دي، خو ساتل یې ډېر ګران

"الکساندر دوماپر"



هغه چا ته چې نه غواړي یو کار پای ته ورسوي، پیلول یې څه ګټه ورته لري؟!

"آمیل"



زه به برخلیک له ګرابوانه ونیسم، پرې به نه ږدم چې هغه د ژوندانه پر وړاندې زما سر ټیټ کړي.

"بتهوون"



هغه څوک چې هره ورځ پر یوه ډار برلاسي نه شي، د ژوندانه لوست یې نه دی زده کړی.

"امرسون"



لوی سړی چې هر کله وغواړي د خپلو احساساتو او افکارو تر منځ پوله جوړولای شي.

"ناپیلیون"



کلک هوډ زمانه اړولای شي.

"شاتوبریان"



هغه زلمی چې وړتیا یې کمزورې او هوډ یې پیاوړی وي تر هغه چې ډېره وړتیا او کمزوری هوډ لري، بري ته نېژدې دی.

"ډاکتر مارډن"

د سیند د بهېدو مخالف لوري ته لامبو کول زړه او ځواک غواړي. که نه د سیند له بهیر سره سم خو مړه کبان هم تللی شي.

"اسمایلز"



د هوډ سستي مو د کمزورۍ لامل دی، که نه انسان تل د هغه څه له پاره چې په کلکه یې وغواړي، پوره ځواک لري.

"ژان ژاک روسو"



ستر هوډ په پیل کې ناشونی ښکاري.

"کارلایل"



هوډ داسې ځواک دی چې پر ټولو ځواکونو واکمني لري، خو چې د پوهې له ځواک سره ملګری وي.

"بوفون"



د هوډ په سینه کې بې شمېره مرغلرې شته، هغه چې غواړي د ژوندانه ربښتینې مانا وپېژني، دا مرغلرې دې راوباسي او ودې یې کاروي.

ژان فینو



زه د لتۍ له لارې دغه مقام ته نه یم رسېدلی، زما د ژوندانه تګلار تل دا وه چې له ستونزو او خنډونو سره وجنګېږم او پرې بریالی شم.

بورک



هوډ مو هرځای ته رسولای شي.

لافونتن



بې هیلې بلهاري، ستره انساني ښېګڼه ده.

"لوفري"

د انساني اروا له پاره شک تر ټولو کړاوونو دردوونکی دی، ناهیلي او ماتې که هرڅومره ترخې او دردوونکې وي تر شکمن ژوندانه ښې دي.

"دشتي"



هوډ چې غښتلی وي، نور نو شرایط دومره ارزښت نه لري.

"ګویټه"



د انسان د ستاینې وړ لویوالی یوازې په بلهارۍ کې دی. بلهاري د هر لویوالي بنسټ دی.

"وه یو"



نیمګړی هوډ تل د غورو او ویناوو په بنه ځان څرګندوي، او غښتلي هوډونه د کړنې په ډګر کې څرګندېږي.

"ګوستاولوبون"



ولې هوډ دومره سخت او هیله دومره اسانه ده؟ ځکه چې په هوډ کې ځواک نغښتی او په هیله کې کمزوري.

"لیندنر"



ویکتورهوګو لا پېنځلس کلن و چې په خپلو یادښتونو کې یې لیکلي وو: "زه غواړم [شاتوبریان] واوسم یا هېڅ نه اوسم" همدا وو چې تر هاغه نومیالي لیکوال هم ښه وځلېد.



پس له بنده دی دا عزم | د خوشال د خاطر جزم
یا نیولی مخ مکې ته | یا مغولو سره رزم

"خشال خان خټک"



چې نیولی مې دا هوډ د ننګ و نام دی
که له خپله هوډه واوړم کنیزک یم

"خوشال خان خټک"

د انسان وژوي ترمنځ ستر توپېر به پوهه او فکر کې نه دی، د هوډ و اختیار په لرلو کې دی.

"ژان ژاک روسو"

❁❁❁

د هوډ په مرسته هرڅه لاس ته راوړلای شو، خو د هوډ د خوځولو له پاره یوې متروکې ته اړتیا ده چې که کار ترې وانه خیستل شي تر ګردو پتو ځواکونو به ژر پخ شي.

"لابوله"

❁❁❁

په ټولو هغو ځانګړتیاوو کې چې له ځان روزنې سره مرسته کوي، یوه هم د هوډ په پرتله ګټوره نه ده.

"پوشه"

❁❁❁

ځواک و هوډ د لوړو اخلاقو بنسټ دی.

"اسمایلز"

❁❁❁

هوډ، تر هغې چې ونه کارول شي، وده نه مومي.

"اسمایلز"

❁❁❁

د هوډ روزنې تر ټولو غوره شیبې د ځوانۍ ورځې دي.

"لاک"

❁❁❁

زما هوډ په کار کې هېڅډول خنډ وګړنګ نه پېژني.

"موسولیني"

❁❁❁

کلک ګامونه د بریالیتوب لار ژر لنډوي.

"دیسرایيلي"

❁❁❁

که په خپل بري ډاډ لرئ، بریالي به شئ.

"ډاکټر شوارتز"

همدا چې د يوې هيلې د لاس ته راوړلو هوډ وکړو، يو اوچت ګام مو پورته کړ.

"سرفوستر"

※※※

د لوړتيا لار ډېرې لوړې ژورې لري.

"سنه کا"

※※※

زموږ په کار کې د "خو" ټکی نه شته، ځکه موږ ډاډ لرو چې هرو، مرو برى مومو.

"نلسن"

※※※

ترهغې چې د لوړ همت خاوند، لوړ ځاى ته نه وي رسېدلى، له هڅو لاس نه اخلي.

"کليله و دمنه"

※※※

په ځوانى کې مې وغوښتل چې نړى مې وپېژني او ورته ګران واوسم، همدا چې نوم مې ياد شي پر ټولو اغېز وکړي او نړيوال تر ما راچاپېر وي او د يوځه لـه املـه مې وستايي.

"تولستوى"

※※※

نهيلي د ګور پر لوري لومړنى ګام دى.

"ناپيليون"

※※※

هغه څوک چې مهال ته انتظار باسي، له لاسه به يې ورکړي.

"ايتاليايى متل"

※※※

ډېر کلک باد هم د ښا اوبه ښوروليى نه شي.

"جاپاني متل"

※※※

پوهان د زده کړې ستونزې او ميندې د لنګېدو درد ښه پېژني.

"سنسکريت متل"

چې پښې لري او ګدايي کوي. پښې يې تېرى دي

"عربي متل"



هوډمن له خپلې خوښې سره سمه نړۍ اړولى شي

"ګوېټه"



په خداى لوړه کوم، که ټول عرب راته يوه خوا شي، زه به هېڅکله شاورونه ګرځوم.

(حضرت علي ک)



# دنده او کار

په هر کار کې فکر وکړه که پای یې ښه درته ښکاره شو کوه یې، که نه ډډه ترې وکړه.

"حضرت محمد(ص)"



دنده پېژندنه هغه سیمټ دي چې د انسان اخلاقي ودانۍ ړنګېدو ته نه پرېږدي.

"مېرمن جیمسون"



تر وزګاره بېګار ښه دی.

"پښتو متل"



چې هره ورځ لار بدلوې، هېڅکله به ځای ته ونه رسېږې.

"بالانش"



انسان د خپل کار وزیار زوی دی.

"داروین"

کار د ژوندانه مالګه ده.

"دري متل"

انسان تر خپله کاره د بل په کار نه پوهېږي.



ناپوه د هرچا په کار کې ګوتې وهي

"آلماني متل"

په کوچنیو کارونو بوختېدل له لویو کارونو نه پاتې کېدل دي.

"کنفوشیوس"



بې کاره ژوند فاسدېږي.

"کاموس"



د نړۍ په ودانولو کې داسې هڅه کوه، لکه تل چې په کې ژوندی یې.

حضرت امیر[ع]



شیخ دې لمونځ روژه کا زه به ډکې پیالې اخلم

هر سړی پیدا دی خپل، خپل کار له که نه

"خوشال خان خټک"



هرچا ته هغه کار وسپارئ چې دی ورته جوړ وي، په دې توګه به هغه له خپل کار نه خوند واخلي اود ګل غوندې به وغوړېږي.

"جورون روسکین"



د وجدان خوښي د دندې تر سرته رسولو وروسته لاس ته راځي.

"اسمایلز"



هېڅوک دومره ناکاره نه دي چې د یوې دندې وړتیا ونه لري.

"ناپیلیون"



کار اسان دی، پیل یې ګران.

"پښتو متل"

دنده د خدای پر لوري غرنی لار ده.

"لاید ژونس



اخلاقي ارزښت د هغو دندو پر شمېر پورې تړلی چې انسان یې سرته رسوي.

"موریس میترلینک"



په نړۍ کې داسې هېڅ څه نه شته چې انسان دې د هغه له پاره ژوندی وي، پرته له خدمت کولو او دندې.

"ولینګتون"



که دنده پېژندنې له یوه ملت نه کډه وکړه او خپل ځای یې ځانځانۍ او عیاشۍ ته پرېښود، د هغه بدبخته ملت په ورځ ژړا په کار ده، ځکه چې د طبیعت له پرېکړې سره سم به یې نن یا سبا د ماتې او له منځه تګ فرمان لاسلیک شي.

"اسمایلز"



دنده هغه څه ده چې له نورو نه یې د ترسره کولو هیله لرو.

"سکاروایلډ"



لومړی دې بشر د دندو په موندلو سرلوړی شي، بیا دې د بشري حقونو چیغې وهل کېږي.

"جنرال کنیزنو"



چې د ملا تیر یې کلک وي، لویه دنده به ونه مومي.

"روسي متل"



که زه یوه ځای ته رسېدلی یم، نو خپل کار و هڅې رسولی یم.

"نیوټن"



اس خپلې وربشې خپله دېروي.

"پښتو متل"

نرمېږه په کار ښه ښکارېږي.

"پښتو متل"



که یوه ښځه یا نر له کاره لاس واخلي، په هېواد کې به هرو، مرو یو تن له سرو او لوږې سره مخامخ شي.

"چیني امپراتور"



پرمختګ د پرله پسې کار زېږنده دی، ځکه چې دمه له کښته ټګ پرته بل څه نه دي.

"ګوستاولوبون"



ناروغ انسان چې کار کوي تر هغه ښه دی چې روغ وي خو وزګار ناست وي.

"ګازوبون"



وزګارتیا تر هرڅه بده ده، ځکه چې وزګار انسان خپل ماغزه خوري او دا ډېره بده انساني ناروغي ده.

"چارلزلمب"



کار چې هرڅومره ستونزور و سخت وي، انسان نه کړوي،خو چې یو رنګی، زړه ماتوونکی او نهیلی شي، بیا نو تر ټولو بدکړاو دی.

"اسمایلز"



درهباني ژوندانه لېونتوب او ګوښې اوسېدل ماغزو ته د کوي (چېچک) ناروغي ده.

"دسنپیر کلیسا مشر"



لوږه د کارګر کور ته ګوري، خو د ورننوتلو زړه نه کوي.

"فرانکلین"



بې کاري لنګېږي، خواري زېږوي.

"پښتو متل"

چې خولې وچې شي د کار ستړیا هیریږي.

"بیلژیکي متل"



هغه کار کی چې تل یوې کوي، ډیره ځلیږي.

"یوناني متل"



یوه ډله مې په دې رټي چې زه ګنډونکي وم، خو زه په ګنډنه کې هیڅ ننګ و شرم نه وینم، ځکه هغه وخت چې ګنډونکی وم د ربتینولی او کارپوهې له امله ستایل کېدم، د مشتریانو کالي مې پر تاکلي وخت ورکول او تول یې له پرې کولو او ګنډلو نه خوښ وو.

د امریکا جمهوري رئیس "آندروجکسن"



وزګارتیا او مرګ یو دي.

"ویلتر"



د کار یوه ګته دا ده چې ورځ لنډوي او عمر اوږدوي.

"دیدرو"



هرځای چې یاست، بوخت اوسئ.

"هانري فوزد"



کار، انسان له دغو دریو سترو بلاوو څخه ژغوري: سستي، بې لاري، اړتیا.

"ویلتر"



بې دمې کار غمجني ده او بې کاره دمه تنبلي.



هلته چې هاندو هڅه نه وي، ښه والی او سپېڅلتیا نه شته.

"برناردن"



هغومره چې طبیعي لاملونه انسان دمې ته راکاږي، همدومره ښایي اخلاقي لاملونه هغه له دمې لرې وساتي.

"مونتسکیو"

د ټولو بدیو سر بیکاري ده. هر حکومت و دولت چې غواړي ټولنه له بدیو وژغوري د هغې وکړیو ته دې کار پیدا کړي.

"پاسکال"



د هنرمن لویه ګټه له خپل بري نه خوند اخیستل دي.

"اګوست ردن"



هغه لویان چې لویو بریاوو ته رسیدلي، تل یې په خپلو ماغزو کې د ناڅاپي پېښو له پاره ځانګړی ځای پرې ایښی و.

"موریس میترلینګ"



په کلکه کار او په کلکه لوبه کوه.

"فرانکلین روز ویلټ"



همدا چې انسان پرمختګ ته نوره اړتیا نه لیده، ځان ته دې تابوت جوړ کړي.

ډاکټر ماردن



که په ښیراوو دې دښمن راپرځي، نو ورته ووایه چې خدای دې وزګار کړه!



# تمدن

د غـــوږ و کچکـــول مې واچاوه پر غـــاړه     دښار هرکور ته شوم ستړی په ولاړه
ما ويل خير به په کې ترنګ د رباب راوړم     چا ويل کده د رباب خو پرون لاړه

"محمد آصف صميم"



آيا ټول ورونه نه يو؟! بشر ته ښايي چې يو، بل ورور وګڼي.

"شکسپير"



انسان ټولنيز ژوی دی.

"سرنک"



انسـان چـې د ژوندانـه موخـه او مانـا وپـېژنـده، نـه يـوازې دا چــې ځان بـه د خپـل ملت لـه وګړيـو سـره برابـر وګڼي، لا چـې د نـورو ملتــو سره به هم څه توپير په کــې ونـه وينــي.

"تولستوی"



چې ځلوېښت ورځې له نورو سره ژوند وکړې يا به د هغوی غوندې شې، يا به يې خوشې کړې.

"عربي متل"



د وګړيـو ترمنـځ لـه هغـو دېوالونـو پرتـه چـې دوی پـه خپلــه جــوړ کړي؛ بل هېڅ توپـير نـه شـته.

"تولستوی"

تولنيزې ښېګڼې تر خانګړيو هڅو اوچتې دي.

"اپلاتون"



د جاپان يوه وزير ويلي وو: "تر هغې چې روغ و بې آزاره ملت وو، د يوه ماشي وينه مو نه توېوله او يوازې مو ښه او ښکلي کارونه کول، نو اروپايانو نيم ځناور بللو، خو وروسته تر هغې چې له روس سره وجنګېدو او نيم ميليون انسانان مو په وينو او خاورو ولړل؛ ويې ويل چې اوس متمدن شوئ.



يو ملت د شتمنۍ په ډېرښت او د ګلکو مورچلو او ښکليو ودانيو په جوړولو تمدن و سوکالۍ ته نه رسېږي، دا کار هله کېداى شي چې روزلي، پوه او د اخلاقو خاوند وګړي يې ډېر شي، ځکه د ملت د لويوالي رښتينى ځواک همدوى دي.

"مارتين لوتين"



په ځنګله کې يې وزېږوه، په ښار کې يې لوى کړه.

"پښتو متل"



يوه ورځ به د جګړې دا تپه تياره شپه پاى ته ورسېږي؛ په بشري تمدن کې به توپ و ټانګ ته ځاى پاتې نه شي او په موزيمونو کې به يې بېلګې د دې له پاره ساتل کېږي چې د تاريخ استادان يې شاګردانو ته وښيي او ورته ووايي چې پخوا بشر په دغو وسلو خپل ورور واژه.

"فتحی الرملي"



يو شمېر لاملونه چې د تمدن په ځينو پړاوونو کې بې ګټې ښکاري، په ځينو نورو پړاوونو کې چې د تمدن پرمختګ د نويو شرايطو غوښتنه کوي؛ يوه ملت ته لويوالى ورښلاى شي.

"ګوستاولوبون"

نوی تمدن هماغه پخوانی وحشت دی، خو نوم و ګالي یې بدل کړي دي.



د اروپايي تمدن بنسټ هڅه او مبارزه ده، د آسيايي تمدن بنسټ څه دی؟ ځانسپارنه او انتظار!

"ويکتوربرار"



اروپا مسيحي نه ده، ابليس لمانځي.

"مهاتماګاندي"



ربښتيني تمدن پرمينه ولاړ وي.



نړۍ د تمدن په هيله زړه شوه، دا غولوونکې او بې مانا نوم تل د يوه ټګ له ستوني راوځي او يوه ناپوهه او ساده زړې ډله د خپلې ټګۍ په اور سېزي.



بشر د تمدن و آزادۍ له خواږه نامه نه بنکپلاک، غلا، مرګ ساندو، سرشکونې او ژړا پرته بل يادګار نه لري؛ خواشيني ده چې د دغو لبونيو د زړه سترګې ړندې دي او هره شېبه په يوه نوې ټګۍ غولېږي.



# اخلاق

زه د اخلاقي لوړتيا د بشپړاوي له پاره رالېږل شوی يم.

"حضرت محمد(ص)"



بحر ډک له مرغلرو چوپ روان وي

د بې ابه خلکو خوی لکه د چړ وي

"ګل پاچا الفت"



د ښېګڼې بنسټ له انسان سره مينه او د پوهې بنسټ د انسان پېژندل دي.

"کنفوشيوس"



اخلاق پانګه ده، اخلاق زموږ تر ټولو ښه او اوچته شتمني ده.

"اسمايلز"



غوره اخلاق د اوبو غوندې بهېږي او د ژوندانه کرونده خړوبوي.

"لاووڅه"



اخلاق تر سوکالۍ غوره دي.

"حضرت محمد(ص)"

پاک اوسئ.

"مهاويرا"



که انسان د کوچنيو ګناهونو پروا ونه کړه، پر لويو ګناهونو به واوړي.

"حضرت عيسی ع"



اخلاقي ماتې د تمدن ماتې ده.

"کاظم زاده ايرانشهر"



نېغه کرښه يوازې په هندسه کې نه، لا چې په اخلاقو کې هم لنډنی لار ده.

"راحل"



بې اخلاقو ملت، بې ګروهې اخلاق او بې پوهې ګروهه ناشوني دي.

"سيد جمال الدين افغان"



زه تل غواړم چې د سپېڅليو خلکو پلوی اوسم او څه ترې زده کړم.

"شکسپير"



که د يوه چا په اخلاقو نه پوهېږې، دوستانو ته يې وګوره.

"جاپاني متل"



همدا چې يوسړی له خپل بريد نه واوړي او هغه ځای ته ورسېږي چې دی يې وړ نه وي، اخلاق يې ورانېږي.

"اپلاتون"



هرڅوک د خپلې سپېڅلتيا ساتونکی دی.

"هندي متل"



د ښځو دنده ده چې د نرو اخلاق وروزي.

"وېلتر"



ښه سړی هغه دی چې پرځان واکمن وي.

"هندي فلسفه"

له انسانانو سره د انسانانو د انسانیت نشتوالی زړګونه تنه په غم اخته کوي.

"وابرټ برنز"



غوره اخلاقو ته تر پوهې او صنایعو ډېر اړ یو.

"سعد زغلول پاشا"



هغه څه چې زما خوښېږي، نورو ته یې هم خوښوم.

"کنفوشیوس"



هغه چې اخلاق نه لري انسان نه دی.

"شامفور"



له لېوني نه کرکه مه کوئ، د بد کولو لوښي ترې واخلئ.

"مهاتما ګاندي"



حسود اختر نه لري.

"فرانسېس بیکن"

خپلې کوچنۍ نیمګړتیاوې د دې له پاره ښکاره کوو چې غټې مو پرې پټې وساتو.

"فنلون"



په بشپړ ایمان کې یوه اور ته اړتیا ده چې د ناپاکۍ او بدګومانۍ خلي پرې وسېزو.

"بیکن"



شپون غوبه څکه سنګدله وباله شي     چې روز ګار کاندي له کانو د بېدیا

حمید مومند

د بد ژبي خوله په درنه چوپتیا تړل کېږي.



ګره مه د ګناه کار نه ده، د هغه چا ده چې دی یې په ناپوهۍ او تیاره کې پرېښی دی.

لاروشفوکولد

په انساني ځانګړتیاوو او اخلاقو کې هیڅ داسې نیمګړتیا او کوږوالي نه شته چې په ښوونه او روزنه سم نه شي.

"بیکن"



په نړۍ کې تر ټولو ښکلی افراط د حق پېژندنې افراط دی.

"لابرویر"



هغوی چې د کار په پیل کې وړیا پند نه مني، په پای کې به په جګه بیه د پښېمانۍ رانیولو ته اړ شي.

"لرداوبري"



همدا چې خپله نیمګړتیا مو وپېژنده او د بشپړلو له پاره یې لاس پرکار شو، د پرمختګ پر لار مو لومړی ګام واخیست.



انسان هله ډېر تېروځي، چې فکر کوي نور یې تېریوستي دي.

"لاروشفوکولد"



غچ اخیستل ښکلا نه لري.

"ناپیلیون"



د لویۍ غوښتنې حس په ټولو خلکو کې یو شان دی، خو توپیر یې د څرګندېدو په بڼه کې وي.

"لاروشفوکلد"



که بد اخلاقي شاته هم وغورځول شي، د هغه ټپ غوندې وي چې تر رغېدو وروسته یې هم نښه پاتې کېږي.



که د انسان لوښې د چاپېریال زېږنده وي ښایي چې چاپېریال انساني شي.



د تېروتنې ښه پسته غچ اخیستنه ده.

"دیل کارنګي"

اخلاق تل یوه پاکلې تله نه لري. اخلاقي ارزښتونه د بشري ټولنیزو او اقتصادي جوړښتونو زیږنده دي. ځکه ډیر شیان وو چې پرون مو چکې ورته وهلې خو نن مو کرکه ترې راځي.

"فتحي الرملی"



د دوو شیانو له امله خدای ته ساندې کوم: د سم چاریو له ساده ګۍ او بې پروایي، او د دروغجنو او ټګانو له ځیرکۍ او هوښیارۍ.

(حضرت علي ع)



سخاوت ډیرې ورکړې ته نه، پر ځای ورکړې ته وایي.

"لابروير"



هرچا ته چې غواړي بریالي شي، وایم: "غوره اخلاق په ځان کې وروزئ"

"البرهوبرد"



پرانسیان اخلاق نه پیژني، مود پیژني.

"ناپلیون"



د اخلاقو خاوندان د ټولنې اروا ده.

"امرسون"



زه هره ورځ له ځانه درې پوښتنې کوم:
- هغه دندې چې زما پر غاړه دي، د وجدان له مخې یې سرته رسوم؟
- له نورو سره په اړیکو کې انساني ارزښتونه په پام کې نیسم؟
- هغه څه چې نورو ته یې ښیم، په خپله یې منم او هماغسې کوم؟

کنفوشیوس



غلا، یوازې د نورو د شتمنیو پټولو ته نه وایي، له هغه څه نه ګټه اخیستل چې مور په رښتیا اړتیا ورته نه لرو؛ هم غلا ده.

مهاتما ګاندي

هغوی چې رښتيني نه دي، هېڅکله به بدمرغه نه شي، هغوی چې رښتيني پوه دي هېڅکله به بېوزلي نه شي، او هغوی چې رښتيني زړور دي، هېڅکله به ماتې ونه خوري.

کنفوشيوس

نړۍ به هله سوکاله شي چې له هغه څه نه چې فطري او منطقي نه دي لاس واخلي.

تولستوی

تر ټولو ستره بد اخلاقي دا ده چې دنده تر سره کولی نه شو خو ځای مو نيولی وي.

ناپيليون

دهرات واکمن خواجه عبدالله انصاري ته وويل:
ماته لارښوونه وکړه يا داسې څوک راولېږه چې لارښوونه راته وکړي.
انصاري ځواب ورکړ:
هغه چې ژوند غواړي، تاته به لارښوونه ونه کړي او هغه چې اخرت غواړي له تا سره به ونه غږېږي. هغه چې ستا د کاله وره ته درځي، تاته لارښوونه نه شي کړای او هغه چې لارښوونه درته کړای شي، ستا د کاله وره ته نه درځي.

❂❂❂

وچ هډوکی د شپېللو نه دی.

"الباني متل"

❂❂❂

*زه دې وچ هډوکي شپېلم خو ملت مې دې سلطان وي*
*دا زما د سخن سيوری په ماناکې همايون کړه*

"حمزه شينواري"

❂❂❂

غل چې په غلا لاس بری نه شي، ځان ته رښتين وايي.

"مراکشي متل"

❂❂❂

چې څه دې ورکړل چوپ اوسه، چې وادې خيستل غږېږه.

"اسپانيايي متل"

هغه چې د توتي غوندې د بل پېښې کوي. په سپين سترګی کې هم تر توتي کم نه دی.

"پوهاند ډاکتر زيار"



ټول ښه دي، خو د هر کار له پاره نه.

"اسپانيايي متل"



نيمګړتيا لټوونکي له نيمګړتياوو سره مخامخېږي، ځکه چې لټوي يې.

"سکاټلنډي متل"



مچی چيچي، خو خپله هم مري.

"انګليسي متل"



د رون ورې ځمکې ته ډېر راکوږ وي.

"ايرلنډي متل"



که له لېوه کره مېلمه ياست، خپل سپی هم بوځئ.

"روسي متل."



ژېړ سپی د سور لنډي ورور دی.

"دري متل"



پيشو که ړنده هم وي، موږک نه پرېږدي.

"عربي متل"



د موږک د ډاړولو له پاره کورته اور مه اچوه.

"پرانسي متل"



لېوه به پوستکی واړوي، خو فکر نه اړوي.

"يوګوسلاوي متل"



پاکلمني او بې وزلي نه جوړه کېږي.

"يوناني متل"

عمر. عادت. دندې او پوهې د ډېرو خلکو اخلاق سم کړي دي.

"ناپیلیون"

ستر مېړونه د ستوریو غوندې سېزي او نړۍ ته رڼا وربښي.

"ناپیلیون"

⁂

که غواړې چې کنځل وانه ورې، څوک مه کنځه.

"آذر بدمارسپندان"

⁂

تر ټولو ستره بداخلاقي دا ده چې د ژوندانه تر پایه خپل رازونه پټ وساتو.

⁂

هرڅوک هغه څه ډېر یادوي چې نه یې لري.

"محمد مسعود"

⁂

اخلاقي شاتګ د تمدن مانۍ ړنګوي.

"کاظم زاده ایرانشهر"

⁂

د ځمکې د مخ او لاندې ټول سره زر دیوې اخلاقي ښېګڼې ارزښت نه لري.

"اپلاتون"

⁂

انسان د هغې ټولنې او چاپېریال بچی دی چې وده په کې کوي.

"موپاسان"

⁂

یو پاک زړه د نړۍ تر ټولو ښکلیو جوماتونو او معبدونو ښکلی دی.

"وېلتر"

⁂

چې یوازېتوب خوښوي یا خدای دی یا ځناور.

"ارستو"

⁂

یا هسې ځان وښیه چې یې، یا هسې واوسه چې ځان ښیې.

"بایزید بسطامی"



# ملګرتیا

دوه ملګري د دوو لاسو غوندې د يوه بل خيري مينځي.

"حضرت محمد ص"



تولنيز ژوند بې ملګري نه کيږي او دا چې ملګرتيا خورا ارزښتمنه لورېينه ده، نو له پېښو او ګواښ سره ډېره مخامخ کيږي.

"حضرت علي ک"



د ناپېژاندو ترمنځ د ملګرتيا څرګندېدل د ستونزو ښکلا ده.

"ويکتور هوګو"



ډېر خلک ډاکټر ته د ورتګ پرځای، يوه همراز و خوالګر ته اړتيا لري چې د دوی د زړه درد ته غوږ ونيسي.

"ديل کارنګی"



لتون ملګرتيا او د زړه مينه مراوې کوي، لکه څوک چې وغواړي د يوې ښکلې نجلی بدن د څېرلو له پاره وسپړي، نو دومره بدرنګی به ووينې چې ښکلا به يې هېره شي.

"محمد حجازي"

داسې خلک هم شته چې د دښمنـی لـه پـاره دوسـتي کـوي.



پـه ملګرتیـا کـې منځلاري اوسـئ، کـېدای شـي چـې پـر دښمنـی واوړي.

"حضرت محمد[ص]"



هغه چې په ملګرتیا کـې دې بـې ځایـه سـتایي، پـه دښمنـی کـې بـه دې هم بېځایـه وغنـدي.

"داراب شهریار"



ښه ملګري لویه شتمني ده.

"دري متل"



مه په بیړه ملګري پیدا کوه او مه يې پـه بیـړه لـه ځانـه شـړه.

"سولون"



انسان ته ښايي چـې نـورو تـه د ورونو پـه سـترګو وګوري.

"کنفوشیوس"



د ملګري موندلـو لـه پـاره، ځان د ملګرتیـا وړ کـړه.

"مورا"



تـر ټولـو غـوره ملـګری هغـه دی چـې نیمګړتیـاوې مـودرپـه ګوتـه کـړي.

"حضرت محمد[ص]"



زما تر ټولو ښه ملګری هغـه دی چـې وریـن تنـدی لـري.

"ویکتور هوګو"

ومې پوښتل چې ملګري ښه دی که ورور؟ ویې ویل: ملګری هغه ورور دی چې انسان یې ځانته په خپله ټاکي.

"امیل فاګو"



ځان ترملګري ځار کړئ.

"اپلاتون"



د کور ښکلا هغه ملګري دي چې ورځي، راځي.

"امرسون"



هغه ملګري چې په ستونزو کې راسره وو، نه هېرېږي.



د ګټې له پاره ملګرتیا، ملګرتیا نه ده، سوداګري ده.



ملګري د ګاډي غوندې په باراني ورځ کې لږ موندل کېږي.



د خولې او زړه وینا چې یوه شي، یارانه ترې جوړېږي.

"پښتو متل"



د ګټې یار او سیوری، تر هغې چې لمرځلېږي، شاوخوا لیدل کېږي.

"بینامین فرانکلین"



سوکالي ملګري زېږوي، ناتار یې ازمېیي.



د دوستۍ راز په دښمنۍ کې ویل مېړانه، لوبي او اخلاق نه دي.



ډېر د ملګري نیمګړتیاوې مه څېړه، که نه تل به بې ملګري پاتې شې، ځکه چې هېڅوک بشپړ نه دی.

حضرت صادق ع

شتمني په سختۍ او ملګري په غم کې په کارېږي

"مرزبان نامه"



يو رښتينی دوست څومره پر زړه پورې دی!

"لافونتن"



هرڅه تېرېږي، ان مرکې، مچې، په غېږ کې نيول او داسې نور مينه ناک اړيکې، خو د دوو اروااوو د مينې تار چې يو ځل يې يو بل پېژندلی او په غېږ کې يې نيولی؛ هېڅکله نه شکېږي.

"رومن رولاند"



په يارانه کې بنګړي ماتېږي.

"پښتو متل"



په دوزخ کې هم ملګري موندل کېدای شي.

"اسپانيايي متل"



که دوست نه شي موندلی، دښمني هم مه کوه.

"يوناني متل"



د ملګري موندلو يوازينۍ لار داده چې لومړی مو د ملګرتيا ځرګندونه وکړو.

"امرسن"



ترناپوه ملګري، بله بده بلا نه شته.

"پرانسي متل"



د هرچا ملګری د هېچا ملګری نه دی.

"بوردالو"

د ربنتینـې ملګرتیـا ونـه ورو، ورو جـګېږي.

"رژواشنګتن"



ربنتینی ملګری د غرنـۍ ونـۍ غونـدې دی، همـدا چـې جـرړې یـې پر تیـږو پـورې ونښتـې، نـور یـې کلـک بادونـه او تـوپانونـه راویستلی نـه شـي.

"اندرې توریه"



ملګری د چترۍ غونـدې پـه ورنـدۍ ورځ کـې پـه درد خـوري.

"پل برولا"



ملګرتیـا یـوار وایـي څرنـګوالی دی چـې دوه جـسمونه سـره پیونـدوي.

"ارستو"



د خـوږ ژبـې، ملـګري ډېروي.

"دادبه پارسي"



ښځې چې د مینې خوند وڅاکه بیـا نـو دوسـتي خونـد نـه ورکـوي.

"لارشفوکو"



که په چا ډاډ نه لـرې، ډېره تـرې کـوه.

"ناپیلیون"



لکه ربنتینې مینې چـې لـږدي، ربنتینـې ملګرتیـاوې هـم لـږ دي.

"لارشفوکو"



ربنتیني ملګري که لـه سـترګو لاړ شـي، لـه زړه نـه ځـي.

"سیسرون"

چې زما ملګری وي، زما ارزښت به پېژني او درناوی به مې کوي.

"آلبرت هوبارد"

❁❁❁

زه خپل ملګري ته د خپل زړه هره خبره کولای شم.

"تورو"

❁❁❁

ازمېيلی مه ازمېيه.

"پښتو متل"

❁❁❁

ملګرتیاوې هم د کورونو، کالیو او ماشینونو غوندې بیا رغاونې ته اړتیا لري.

"ډاکټر جانسن"

❁❁❁

که غواړې چې ملګري دې د ژوندانه ترپایه وساتې په خپلو ماغزو کې به دهغوی د نیمګړتیاوو او تېروتنو د بښخولو له پاره هدیره جوړوې.

❁❁❁

د دوستانو خوړول د دښمنانو د هیلو بشپړول دي.

"سعدی"

❁❁❁

زما رښتیني ملګري په ببوزلو کې دي، شتمن ملګرتیا نه پېژني.

"موزارت"

❁❁❁

که د داسې ملګري د موندلو هیله لرئ چې له هره اړخه دې بشپړ وي، تر مرګه به بې ملګري پاتې شئ.

❁❁❁

بې ملګرتیا هم ژوند شته؟

❁❁❁

که ټوله نړۍ پر بل مخ واوړي او ړنګه شي پروانــه شـته، پـه ملګرتیا به یې بیا ودانه کړو، خـو کـه د ملګرتیا نـړۍ ړنګه شوه پـه څه به یې جـوړوو؟



آه. د نــړۍ پرمــخ خومـــره ډېر، ښه او پـــر زړه پـــورې انســانان اوسېږي چې تراوسـه مې پېژنـدلي نـه دي او لایـې د ملګرتیا پـه ویـاړ سرلوړی شـویم نـه یم.



ترهغې چې د انسانیت په مانا ونـه پوهېږو، ملـګري بـه ونـه لـرو.



زه بد ملګری نـه پـېژنـم ځکـه چـې بدملـګری نـه شـته، زما ملـګري به هرو مـرو ښه وي، هغـه چـې پـه دروغـو ماتـه ځان ملـګری ښیـي او پـه ناپوهۍ کې مـې پـر بـده لار بیـایي، زمـا ملـګری نـه دی، داهغـه ناچلـه لوټ ته ورته دی چې سرې یې یـه تیـاره کـې لـه چـا نـه اخلـي او د سمې سـوړې کـونـان پـرې کـوي، خـو هېڅکلـه پیسې کـېدای نـه شي. تاســې داسې ناچله لوټونو ته ښه یـا بـده شـتمني ویلـی شـئ؟



ملګري تشبیه نـه لـري.



# تيتال (غوړه مالي)

غوړه مال، يا ناپوه دی چې غواړي سپک مې کړي او يا چالاکه دی چې غواړي ومې غولوي.

"چيني متل"



غوړه مالان د دوستانو غوندې ښکاري، لکه سپي چې لېوانو ته ورته دي.

"ناشناس"



تيتال د ناپوهانو خواړه دي.

"شکسپير"



لوړوني تر تيټ ونو سر تيتی ته ډېر اړ وځي.

"پوهاند ډاکټر زيار"

ډېر خلک د يوه هډوکي له پاره له ځانه سپي جوړوي.

"سويډي متل"

په کورنيو ځناورو کې له غوړه مال نه وړار شه.

"يوناني متل"

پوهان د غوړه مالانو ملګرتيا نه کوي.

"ناپيليون"

غوړه مال سړی يـو پټ دښمـن دی.

"مجاري متل"



کـه د يـوه مقـام د لاس تـه راوړلـو لـه پـاره دې تيـتال تـه غـاړه کېښوده، له يوه غـوره مقامـه بـه راولـوېږې.



هغه خلک ډېريالي شوي چـې خپلـه ستاينه يـې لـږ اورېدلـې.

"مېرمن اميل زولا"

پر خوله دې شـين پسـرلی، پـر زړه دې کړنـگ ژمـی.

"پښتو متل"



غوړه مال پـټ دښمـن دی.

"هنګري متل"



د غوړه مالانو ژوند پر هغوی پـورې تـړلی چـې غـوړه مـالي اخلـي.

"لافوتين"



د غوړه مال خبره پـه زهـرو لـړلي شـات دي.

"لاتيني متل"



يو سـړی پـه يـوه وخـت کـې هـم دوسـت و هـم غـوړه مـالېدی نـه شي.



تيتال هم ويونکـی نـاولی کـوي او هـم اورېدونکـی.

"ديل کارنګي"



تيتال هغه ناچله روپـی ده چـې زمـوږ ځانځانـی دود کـړي.

"لاروشفوکو"

تیتال د ایرانیانو د خوب رګ دی.

"محمد مسعود"



ور ستاینه تیتال نه دی.



# شتمني

که د مېږي غوندې تول ژوند په راټولولو تېر شي، نو لګولو ته به څه وخت پاتې شي؟

"پوهاند ډاکتر زيار"

❁❁❁

بې پيسو سړی، بې غشي لينده ده.

"فوللر"

❁❁❁

ورېسترګی په پيسو نه مړېږي.

"سن دوبران"

❁❁❁

په خپله پيسې بدې نه دي، له پيسو سره مينه بده ده.

"مولوک"

❁❁❁

چې پيسه وزېږېده، د بشر سوکالي مړه شوه.

"سنکا"

❁❁❁

که پيسې نه وای، جګړه به نه وه.

"ادنا"

که زه د تکـزاس و دوزخ خـاوند وای، تکـزاس مـې پـه کرایـه ورکاوه او په دوزخ کـې بـه اوسېدم.

❁❁❁

وینا د پیسو غونـدې لـګوه.

"آلماني متل"

❁❁❁

که په جیب کې پیسې نه لرې، پـه خوله کې شات ولـره.

"یوناني متل"

❁❁❁

پیسه د جـګرې پـلار او د سـولې مـور ده.

❁❁❁

ګېډور سرې د اتل غونـدې خپـل خـواره ساتي.

"ناپیلیون"

❁❁❁

اوس د پرهېزګارۍ او پاکلمنۍ داسې دېوال نـه دی پـاتې چـې د پیسو په غشي سـورۍ نـه شـي.

"محمد مسعود"

❁❁❁

هغـه روپۍ چـې پـه جـیب کـې تـر ډېرېـو ورځو ډېره وځنـډېږي؛ خوسا او بدبویـه کـېږي.

"رالف بیګو"

❁❁❁

برېنـډ لـه لارې اوړي، وږي نـه.

"پښتو متل"

❁❁❁

د غلـه او شـتمن تـوپیر دا دی چـې غـل لـه شـتمنو غـلا کـوي او شتمن له بېوزلـو.

"برنارد شاو"

چاړه چې د سرو شـي، څوک یـې پـر ګېډه نـه منـډي.

"پښتو متل"

وړي د خپلــي ګېډې د مړولــو پــه کــړاو اختــه دی او شــــتمن د ګېډې لــــه درده ځوربږي.

"بینیامین فرانکلین"

❁❁❁

هېندو پیســې ګټي پښتـون کیسـې.

"پښتو متل"

❁❁❁

نور نو یو بـې مـاغزو مـردار ګېډی چـې د پـلار و نیکـه یـا خپلـې غـلا او جنایت له کبله شتمن شـوی؛ پـر نـورو ویاړنـه شي پلـوړلای.

"فرانکلین"

❁❁❁

اړ سترګې نــه لـري.

"پښتو متل"

❁❁❁

شـتمني نـاولی توکـی دی او بـې هـنره دې تـه هـــخوي چـــې تــر هـنرمنو ځان لــوړ وګڼي.

❁❁❁

سپما د شتمنی ســرچینــه ده.

"برتراندراسل"

❁❁❁

د میلیونر او غله د نومونـــو پـه مانـا کـې تـوپـیر نـه شته، یـوازې یـې توري ســره بـېل دي.

"فتحی الرملي"

❁❁❁

اغونده ګډله، خو له پــوره ځنـې ځغلــه.

"پښتو متل"

❁❁❁

چې په لږ ګټه کـې سـپما ونـه کـړای شـي، پـه ډېره کـې یـې هـم نـه شي کــړای.

"ډاکتر ماردن"

پردی سپی په دوړی خپل دی.

"پښتو متل"



خلک هغه سر کوزي (خوکان) دي چې سره زرخوري، زه یې هم مخې ته سره زر شیندم او هرې خوا ته مې چې زړه غواړي بیایم یې.

"ناپیلیون"



پیسې شپږم حس دی، بې له هغه نور پینځه حسونه کار نه کوي.

"سامرست موام"



لوږه نه دار پېژني، نه قانون

"ناپیلیون"



شتمن دومره په ګته او بسپنه روږدي شوي چې یوازې یې ځانپلورې کچنی پیسو لګولو ته اړویستلای شي.

"مونتسکیو"



که د ورغوي په خاربښت رښتیا پیسې راتللای، نو پیسه والا به یو مخیز پمن شوی وای.

"پوهاند داکتر زیار"



لوږه د پاکلمنی تر ټولو بد ساتونکی دی.

"ایتالیایي متل"



که په ځنګله کې دې هم کور وي، بې ځایه لرګي مه سېزه.

"چیني متل"



سره زر انسانانی مقناطیس دی.

"پرانسي متل"

خپلو ماشومانو تـــه ســپېڅلتيا ورزده کـړئ، ځکـه چـې يـوازې سپېڅلتيا د ســوکالۍ لامـل دى، نـه پيسـې او شـتمني.

"بتهوون"



شـتمنو تـه د پوهـې لاس تـه راوړل دومـره ګران دي، لکـه پوهـانو تـه د شـتمنۍ لاس ته راوړل.

"لارشفوکو"



پيسې هېڅوک نه پـېژنـي، پيسـې غوروونـه نـه لـري، پيسـې سترګې نـه لري، پيسې زړه نـه لـري.

"بالزاک"



که د ګېډې درد نه واى د ښکاري پـه لومـه کـې بـه هـېڅ مرغـۍ نـه نښته او ښکاري بـه لومـه نـه اېښوده.

"سعدي"



سپما، بـېوزلۍ شـتمنوي او شـتمن هوښيـاروي.

"الکساندر دوما"



پيسې هغه بـوت دى چـې ټول يـې لمـانځي، خـو دا بـوت معبـد نـه لـري.

"روتچيلد"



لوږه او بې وزلي نر جنـايت تـه او ښځه فحشـا تـه هـڅوي.

"ويکتور هوګو"



تشه لاسه ته مې دښمـــن يـې.

"پښتو متل"

چې خبره د پيسو شي، بيا ټول يو دين و قانون مني.

"وېلټر"



چې يو يې خوري نور ورته ګوري، د اسمان کاني دې پرې ووري.

"پښتو متل"



پيغمبران له شتمنو کورنيو څخه نه وو او کړ شمېر لويان و نوميالي له ويجاړو جونګړو څخه راپاڅېدلي دي.



پيسې د لاس خيرې دي.

"پښتو متل"



وږې ګېډه زړه سوی نه لري.

"دري متل"



شتمني وينه ده که په بدن کې وچه شوه زړه دربېږي، که بيخي ډېره شوه زړه چوي، د دې له پاره چې ښه ژوند وکړو ټل د وينې يوې منځنۍ اندازې ته اړتيا لرو.



# هېواد، ملت و تولنه

که هېوادنی مینه نه وای د بدې هوا او اوبو هېوادونه او بنارونه به ړنګ و تش پاتې وو.

"حضرت محمد ص"



ما د محراب مصلی وشکوله ځکه چې د هېوادنیو تپونو د ترلو اړتیا وه.

"ویکتور هوګو"



د هېواد ودانې، د بېوزلی او ناپوهی مخنیوی او د فرهنګ و روغتیا پراخول په خبرو نه کېږي، د دې له پاره بنایې کار وکړو، پرله پسې کار.



لومړنی هېواد چې روغتون په کې جوړ شو؛ ایران و.

"روانسون"



له ټولنیز ژوندانه سره مینه نه لرل، له ژوندانه سره مینه نه لرل دي.

"حجازي"

که غوارې وپوهېږې چې هېواد څومره ګران دی، څه موده بهرلاړ شه.

"رومي متل"



څومره بده ده چې انسان داسې مهال مړ شي چې خپل هېواد ته يې هېڅ خدمت نه وکړي.

"لينکلن"



ښايي چې په ښوونځي کې هېواد وپېژنو.

"ميشله"



ټول قومي او ملي بريالیتوبونه د يووالي زېږنده دي، خو يووالي پسرلنی باران نه دی چې په خپله ورېږي، د هر ملت د يووالي تاداوونه د هغه ملت خواخوږي پوهان و فلاسفه ږدي.

"قيام الدين خادم"



له هېواد سره مينه تر ټولو مينو اوچته ده.



هېوادنۍ مينه زما د دين و مذهب اوچت پړاو دی.

"مهاتما ګاندي"



په نړۍ کې هرڅه ښکلي دي او تر دا هرڅه د هېواد په لار کې مړينه ډېره ښکلې ده.

"ابو مسلم خراساني"



هرچا ته خپل هېواد ګران دی، خو د ګرانښت لار نه پېژني.



د روم امپراتور "کالبا" چې تر توره لاندې ورمېږ کېښوده، جلاد ته يې مخ ورواړاوه او ويې ويل: "ووهه! که د روم و رومي ملت د ښېګڼې له پاره يې وهې!"

هېڅوک حق نه لري چې ځان ووژني او که ویې واژه په دې توګه به یې خپل ځان له خپل هېواد نه غلا کړی وي.

❁❁❁

که څوک بې هوا ژوندی پاتې کېدی شي، زه به هم بې ایرانه مانیز ژوند ولرلای شم.

"بهرام شاه رخ"

❁❁❁

د ایران په سلطنتي دربار کې کلک حکم و چې د شاه پر مېز دې هېڅ‌ډول بهرني توکي او محصولات ونه لیدل شي.

"دنیون"

❁❁❁

یو ستر ملت یو پاینده دولت ته اړتیا لري چې د یوه سري په مړینه ونه نړېږي.

"ناپیلیون"

❁❁❁

روزنه تر ډوډۍ وروسته د ملت لومړنۍ اړتیا ده.

"دانتون"

❁❁❁

د خپلواکې‌پالو غورځنګو ټول ګوزارونه پر تېریګرو لګېږي، نه پر تېري.

"مونتسکیو"

❁❁❁

د ملتو وړتیا هغه مهال څرګندېږي چې له یوه تاریخي ناتار سره مخامخ شي.

❁❁❁

د ملتونو پر مختګ و بشپړتیا د هغوی د ځمکو د ارتوالي له مخې نه ټاکل کېږي.

"اسمایلز"

❁❁❁

مانیز څواک چې شاته ولوید، ملي ژوندون ورو، ورو د مرګ خواته ځي.

د هر ډېره کي خــبره د منلـو نـه وي.

"شيخ محمد خياباني"



هـر ملـت اړ دی چې د بشـپړتيا د قـانون لــه مخــې يــا پرمختــګ وکړي يا مړ شـــي.



چې ځواک ملي نه وي، ځانګړي ځواکونه په خلي هم نه ارزي.



د ملتونو خپلواکـي پـه ښېګنه او اوچتـو اخلاقـو سـاتل کـېږي.

"شيخ محمد خياباني"



د يـوه ملـت راتلونکې تـه بـل هـېڅ څه دومـره وژونکـــي نــه دي، لکه د خپـل هـېواد لـه سياسـت نـه چـې لاس واخلـي او لـه خپـل ځواک څخه يومخــيزې سترګې وتـړي.

"سيد ضياالدين طباطبايي"



يو ملت هغه مهال لوټېږي چې د کارونو په سرکې يې غله ناست وي.

"ډاکټر اراني"



په زورواکی کې د وګړيو سوکالي او امنيت د هوسی په ښکره کې وي.

"مونتسکيو"



پـه راتلونکيـو ملـي بريــاوو ډاډ دی چــې وګړي د انتظــار ترخــې شيبې تــېروي.



مــاذي ځواک لــړځېږي او اوړي، خــو مــانيز ځواک کلـک او نـــه مــاتېدونکی وي.

ګوستاولوبون

د نومیالیو نومونــــه او یادګارونــــه د یــوه ملــت مــیراث دی چــې بــېوزلي، شــاګــ، بدمرغــي او ان بنکـېلاک یــې هــم تــرې اخیســتلای نـــه شي.



پرګنې چې ویده شـــي، بشپړې ویـدېږي خـو چـې راویـښې شـي بیـا سور پر مخنګ نـه مني.

"شیخ محمد خیاباني"



په ننیو ټولنــیزو جوړښتونــو کـې د روزنــې پوښتنه د ژوندانــه او مــرګ پوښتنــه ده.

"ارنست زمان"

هغه چا چې پــه تیاره کـې ژونـد کـړی وي، د یـوې نـاڅاپي رڼا پـر وړاندې یـې سترګې ړنـدېږي.



یو خاین دفــاع وزیـر د هـېواد پـه کمزورتیـا او شـاګـ کـې د دښمـن تر سلو لښکـرو ډېر اغـېز لـرلای شـي، او یـو نـاپـوه فرهنګ وزیـر د ټولنـې په نـاپوهـی او تیـاره سـاتلوکـې د دښمـن تـر سـلو تبلیغـاتي کانـالونو ډېره ونډه لرلای شـــي.

"محمد مسعود"



د پیـاوړې ټولنـې ستونی د بدمرغیـو او بـــدو پـېښو پـه زهــرو نــه ترخـېږي.



که یو نه شو، ورک بـه شـو.

"باچا خان"



یووالی بــری دی.

"میرابو"

هغه چې خپلې ټولنيزې دندې پرځای نه کړي، له خپلو حقونو څخه بې برخې کېږي.

"شيخ محمد خياباني"



دېرې ټولنې شته چې فکرونو ته نه ګوري، يوازې خبرو ته ګوري. کېدای شي چې د داسې ټولنو غړي په يوه شيبه کې د يوه وياند وينا ته کلکې چکې ووهي، خو تر لږ ځنډ وروسته د هغه پرخلاف ودرېږي.

"ګوستاوبولان"



دوه لاملونه يو هېواد ويجاړوي: لومړی، چې پوهان ونه لري، دويم، چې د چارو واګې د پوهانو په لاس کې نه وي.

"وېلتر"



د هېوادونو ترمنځ بريدونه دولتونو ټاکلي نه ملتونو.



# خدایؑ

تر ټولو کلک پړی چې د ژوندانه د ستنو په لړځېدو کې يې نيسې؛ هغه اړيکې دی چې ستا او لوی خدای تر منځ ټينګ دی.

"حضرت عليؑ"



يوه کوچنی مرغی چې تر پانو لاندې غاړه وهي، د خدای د شتوالي پېژندلو ته بس ده.

"ويکتور هوګو"



هغه سينه چې د خدای ياد په کې نه وي، داسې محکمه ده چې قاضي نه لري.

"روسو"



دا نه شي کېدای چې انسان په خدای ګروهمن نه وي، زه د کليسا د ځينو مشرانو دې وينا ته ګوته پر غاښ يم چې وايي، ميترلينګ خدای نه مني.

موريس ميترلينک

يوازېنې دعا چې د خداى لــه شان سره ښايـي دا ده چې هغـه تـه ودرېږو او ووايو: خدايه! مـــوږ تـا نـه پـېژنولـه دې پرتـه كـه هـرڅه ووايـو، كه كفر نه وي نو سـپكاوى خـو هـرو، مـرو دى.

"موريس ميترلينک"



آيا خــداى تـه دعـا كـول او لـه هغـه نـه ښـنه غوښتـل د خـداى پـر وړاندې سپين سترګي نه ده؟ ځكــه، كلـه چې مـوږ لـه خـداى نـه غـوارو چې يوڅه راكړي، مانا يې دا ده چــې هغـه خپـل كـار نـه پـېژنـي، يـا پـه بله وينا په اړتياوو مو نه پوهـېږي، چې بشپړې يـې كـړي. كلـه چې مـوږ د يوه كال كول وريـادوو، دا مانـا لـري چــې هغـه پوهـو و چــې عـادل نـه دى، ظالـم دى او يـا ځيرتيـا او تينـګښت نـه لـري.

"موريس ميترلينک"



انسـان بـه هېڅكلـه ونـه پوهـېږي چې د خـداى پـر وړانـدې چـــې هـرڅه مـو لـه هغـه دي؛ څه مسؤوليت لـرو او هغـه بـه څه ډول پوښتنــــه رانه وكـړي.

"موريس ميترلينک"



آيا يـوازې لـه خـداى نـه خير و بركـت وغـوارو او بلاووتـه يـې سـر ټيټ نه كـړو؟

"پيغمبر ايوب"



د پوهې ججوره دومره ارته ده چې "لوى خداى" په كې ځاى. شي؟!

"توفيق الحكيم"



هغـه خـداى چـې مـوږ يـې لمـانځو تـل زمـوږ غونــدې دى، ځكـــه همدا زمـوږ پوهـه ده چې د خـداى ځانګړنــې ســتايي. كــه ستاســې اندوليد تــر دا اوس زرواري ستر شي، خـداى بـه مـو هـم زر وارې ستر

شي او که اند ولید مو زر ځلي نور هـم پـاک شـو، خـدای بـه مـو زرځلـي نور هم پاک شـي.

موريس ميترلينک



زه چمتـو یم ان خـورا لرغونـي خدايـان چـې زما عقـل یـې ونـه مني، ويې نه منـم.

مهاتما گاندي



# بشر پالنه

ته پر هغوی چې د ځمکې پـر مخ دي لورېنـه وکـړه، هغـه چې پـه اسمان کې دی پرتا بـه لورېنـه وکـړي.

"حضرت محمد(ص)"



تر ټولو ښه هغه څوک دی چـې نـورو تـه يـې ګټه ورسـېږي.

"حضرت محمد(ص)"



که شتمن ياست مرسته وکـړئ. کـه نـه ياسـت ډاډ ورکـړئ.

"لقووه"



هغه چې د نورو ښېګڼه غـواړي، خپلـه بـه يـې هـم لاس تـه راوړي.

"اپلاتون"



د نـورو غمخـوري خونـدوره ده.

"محمد حجازي"



وکړي واړه کـارونــه خپل کـــا　　مردان هغه دي چې کار د بل کا

چې څوک ارام کښې د نېکو نام کښې · د خــــوږو ږږونو دارو به تل کــا
"خوشال خان ختک"



نـه هـر تـورپوسـتی تـور زړی دي او نـه هـر سـپين پوســـتی ســپين زړی، که نــه ولـې بـه د تـورې غـوا پـی سـپينې وای او د سـپينې لمنځې نانځره تــور؟

"پوهاند ډاکټر زيار"



کـېدای شـي چـې نـور زمـوږ د خواخـوږی او ښېګنې لـه امله مننـه رانه ونه کـړي، خـو د مننـې کمـی د ښېګنو ارزښت نـه راټيټوي.
"بنيام"



کله، کله يوه مړی تـر لويـې مېلمستيا غـوره وي.

"تونګي"



که زړســواندي او مينـه نـاک نـه ياسـت، نـو پـه نـړی کـې مـو خپلـه دنده بشپړه کـړې نـه ده.

"شارل يوکستون"



پلار مړي ته خواخـوږی پـلار شـه.

"حضرت محمد ص"



په مينه توله نړی نيـول کـېدای شـي.



بودا د ژوندانـه پـه پـای کـې خپلـه وينـا پـه دغـو دوو خبـرو را لنـډه کړه: مينــه، زړه ســوی.

"بودا"



په نړی کې تر مينـې پورتـه څه نـه وينـم.

"بتهوون"

د انسان د سوکالۍ زړې په مينه کې دي.

"اپلاتون"



د انسان زړه ترهنده (وحشي) دی، خو په مينه لاسته راځي.

"حضرت امير[ع]"



مينه مه هېروئ او بې ارزښته يې مه ګڼئ.

"اپلاتون"



د خوارانو د موسکا ليدل د هغوی د اوښکو تر ليدلو دردوونکې ده.

"مادام وولير"



د بشر د زړه لاس ته راوړل څومره آسان دي؛ په څومره وړو شيانو خوښېږي! سربېره پردې هم د زړه ماتولو غږ، نړۍ نيولې ده.

"دشتي"



# حق و قانون

حق ارزښتمنه او درنــه کلمـه ده او کـه هرڅومره ترخـه هـم وي پـه خپله خـوږه اومنلـې پايلـه ارزي.

"حضرت علیؑ"



هغـه قـانون چـې د تندخويـی پـر بنســټ ولاړوي، تــر يــوه مــوده پورې به وچلېږي، خو تلپــاتې کـېدی نـه شـي.

"کوستاولوبون"



يوه ناحقه پرېکړه تر څو جنايتونو، ډېر تاوان و ويجاړتيا رامنځته کـوي، ځکه جنايت د ژوندانه وياله او ناحقه پرېکړه د هغې چينه چټلوي.

"فرانسين بيکن"



رښتيا ويـنا ترخه وي، خـو لـږ شـمېر خـوږې ويـناوې رښتيـا وي.



حق و قـانون هغـه تـوره ده چـې لاسـتی يـې د زورور او تـېره څوکـه يـې د کمـزوري پـه لاس کـې وي. پـه دې تـوګه واک لـه زورور سـره دی

او که کمزوری هر ډول تینګار ورسرغړاوی کوي، بې لــه دې چــې خپلې ګوتې پرې کړي. بله څه ګټه لري؟

"محمد حجازي"



داسې ټګلار ولره چې هغه د ټولو قانون شي.

"کانت"



یوازې هغه چا ته ګیله کوه چې په ستونزه کې مرسته درسره کولای شي.

"حضرت امیرؓ"



یوازینی قانون چې سوکالي رابنلی شي، د اخلاقو او انسانیت قانون دی.



قانون چې پای ته ورسېږي، تېری پیل شي.

"ویلیام پیت"



هغه چې په دولتي دنده کې بوخت دی، ځان دې له خلکو سره پېیلي وګڼي.

"توماس جفرسن"



دولتي کارکوونکي د کتابتون د کتابونو غوندې دي، هغه چې نه لوستل کېږي په جګ ځای کې ایښودل شوي وي.



هېڅ قانون، مذهب و تګلار بده نه ده. ټکی دا دی چې د چا په لاس کې لوېدلې ده؟

"تن"



مینه تر قانون اوچته ده.

"چیني متل"

قانون څه دی؟ دا بې سا الفاظ چې د ژوند یو لاس ته لوېږي کوم ارزښت نه لري. د کار و کړنې هغه ډول چې د دغو ژوندیو په لاس تر سره کېږي ارزښت لري.

⁂

ډېر د دې له پاره پوستین چپه اغوندي چې ارځېره یې راڅرګنده نه شي.

"پوهاند ډاکتر زیار"

⁂

رښتیا وایئ.

"شیللر"

⁂

مالیو ته د داسې قوانینو جوړول په کار دي چې د مالیې تولونې ډول تر مالیې درون نه وي.

"مونتسکیو"

⁂

د دروغو ډیوه رڼا نه لري.

"دري متل"

⁂

په خدای لوړه کوم، که حسن و حسین په ناحقه یو زړه وځوروي یا له چا نه یو دینار په زور واخلي، په هماغه توره مې چې بوت پرستان د ژوندانه له سپرلي نه را غورځولي، د پیغمبر لمسیو ته به هم ادب پرې وروښیم.

"حضرت علی ک"

⁂

قانون ملت نه، ملت قانون جوړوي.

"بریتانوي پوه"

⁂

ټول خلک د قانون پر وړاندې خپلواک و برابر دي، خو په دوی کې ګڼ شمېر یوازې خپلواک دي چې یا له لوږې مړه شي او یا د نورو د واکمنۍ زنځیر پر غاړه وزغمي.

"فردیناند بوتسیون"

رښتينی حق يو بې بنسټه او دروغجن تصور دی. هرچېرته کمزوری د ځواکمن تر پښو لاندې کېږي.

❁❁❁

د رښتيا او دروغو ترمنځ څلور ګوتې واټن دی. هېڅکله په خپل قضاوت کې دغه لنډ واټن له پامه مه غورځوئ.

"حضرت علی[ک]"

❁❁❁

د تاريخ په ژبه کې حق و زور په يوه مانا راغلي دي.

❁❁❁

هله چې څوک له چا نه غچ اخلي، ځان له خپل دښمن سره سيالوي، خو په تېرېدنه او بښنه کې ځان لوړ ترې ښيي.

❁❁❁

کېدای شي چې هر حق د قانون په بڼه څرګند شي، خو هر قانون د حق په بڼه ښکاره کېدای نه شي.

❁❁❁

په ډېر اړخيزو پېښو کې بيړنی پرېکړه د لېونتوب نښه ده.

"مونتني"

❁❁❁

که رښتيا ترخه هم ښکاري. زغمل يې په کار دي.

❁❁❁

قوانين د وجدان کمزوري بشپړوي، که نه، کېدای شي چې قوانينو ته به اړتيا نه وه.

❁❁❁

که د غله ګوتې پرې کېږي، د سيمې د مشر لاس دې په ځنګل کې غوځ شي.

❁❁❁

هغه ټولنه چې له رټلو او ګره مولو نه ډار، خپل ځای له قانون نه ويرې ته په کې پرېږدي، بدبخته ده او تر هغې لا بد بخته هغه ملت دی چې له قانونه يې هم سترګه ونه سېزي.

هماغسې چې اندول تېرى عدل (نياو) دى، ځانګړى نياو هم تېرى دى.

"محمد مسعود"



د جنايتونو له ارلاملونو سره دې مبارزه وشي، که نه د هغوى په بهرنيو ښکارندو يوختېدل کوم درد نه درملوي.

"فتحي الرملي"



د بديو وروستى پړاو، د تېري په لار کې د قانون کارول دي.

"ويلتر"



د دې له پاره چې قانون ښه پلى شي، ښايي د وګړيو ارواوې يې منلو ته چمتو وي.

"مونتسکيو"



ارستو چې د اپلاتون فلسفه تر کره کتنه لاندې راوستله، ورته وويل شول چې ولې دې د خپل ښوونکي درناوى له پامه وغورځاوه؟ هغه ځواب ورکړ: "ښوونکى راته ګران دى، خو رښتيا راته تر هغه هم ډېره ګرانه ده"



د يوې ټولنې ويجاړې دوه ډوله ده: لومړى، هله چې وګړي قانون نه مني، چې دا درد چاره لري، او بل دا چې قانون وګړي بدوردوي چې دا درد درمل نه لري، ځکه درد د درملنې زېږنده وي.

"مونتسکيو"



د پرانسې د اوردو نوميالي يهودي افسر "دريفوس" چې د سزاکاللو له پاره ته، خپلې مېرمنې "امېل زولا" ته يې وويل:

"محکمې او قضاوت زه محکوم کړم، نورو هم دا پرېکړه سمه وګڼله. خو ته پوهه شه چې زه بې ګناه يم!"

❁❁❁

قانون و اخلاقي ښوونې هله اغېزناکېدای شي چې د کتابو له مخونو د زړه مخونو ته ولېږدېږي.

❁❁❁

بشر چې منونکی او سمچاری وي، قانون ته اړتيا نه لري، او که سرغړاو او بد چاری شو، بيا يې قانون مخه نيولی نه شي.

"ديسرائيلي"

❁❁❁

چې باران ودرېد، سيند به روڼ شي.

"ترکي متل"

❁❁❁

که محکمې ته دې خپله غوښتنه وړاندې کړه، پيشو به دې وګټي، خو غوا به بايلې.

"چيني متل"

❁❁❁

د سيند اوبه چې تيټې شي، تيږي يې راښکاره کېږي.

"انګرېزي متل"

❁❁❁

هرڅوک د سپينې وينا د اورېدو زغم نه لري.

"توفيق الحکيم"

❁❁❁

که زه د رښتينولی په څرګندولو تاوان وکړاو ووينم، پروا نه شته خو چې زما په چوپتيا رښتينولی ته تاوان ونه رسېږي.

"جان پيم"

❁❁❁

بدې چې پر وره رانسوځي، نېاو له کړکی تښتي.

"ترکي متل"

په هیڅ‌ځا کې مې داسې ګناه نه ده لیدلې چې په خپله مې نه وي کړې.

"ګویټه"

❁❁❁

موږ ته قانون ترانـدازې ډېر ارزښت لري او انسان لږ.

"دیزرایيلي"

❁❁❁

قانون تـه ښایـي چـې تـاوان راوګرځوي، نـه دا چـې د تـاوان راګرځولو له پـاره نـوی تـاوان پـېښ کړي یـا دا چـې د رنګ شـوي ښار په بدل کـې ودان ښار رنګ کړي.

"مونتسکیو"

❁❁❁

رښتیـا او سـور ګل دواړه اغـزن دي.

"اسپانیایي متل"

❁❁❁

غوا به توره وي، خـو پـی یـې سـپینې دي.

"روسي متل"

❁❁❁

په واوره کې د پښو پـل نـه پـټېږي.

"جاپاني متل"

❁❁❁

زما پـه انـد حـق نـه پـېژنـدل ستره نیمګړتیـا ده چـې کـېدای شي څوک یې ولـري!

"ناپیلیون"

❁❁❁

زه به رښتیا وایم که د هنـد ملـت پـه تـاوان هـم وي.

"رابیند رانات ټاګور"

❁❁❁

اوښ پر پر بده نـه وهـل کـېږي

"پښتو متل"

که شپه تیاره ده، مــنې پــه شــمار دي

"پښتو متل"



لمر په دوو ګوتو نــه پټېږي

"پښتو متل"



د بېوزلو او بدمرغو ټولنو قــانون یــا ړونــد دی یــا لېونــی



# سیاست و واکمني

سیاست پوهه ده، او لـه اخلاقـو نـه بـېل دی.

"نیکولو – ماکیاولي"



پر زړونو پاچـاهي تـر ټولـو ښه واکمنـي ده.

"ناپیلیون"



هر ملـت د هماغـه حکومـت وړ دی، چـې پـرې واکمـن دی.

"حضرت علي ک"



بریـالی لاربښود هغـه دی چـې د پرېکـړې تـر کولـو او د هغـې تـر څرګندولو د مخـه یـې پـه اړه پـوره او ژوره څېړنـه کـړې وي.

"نیکولو – ماکیاولي"



دیموا کراسـي رژیم، د ټولنـي حکومـت، د ټولنـې پـه لاس، د ټولنې لـه پـاره دی.

"ابېراهام لینکلن"



سیاست نـوې بدمرغـي ده.

"ناپیلیون"



سیاسـت د اقتصـاد نچـوړ دی.

د ټولنې بې وزلي او خوارۍ د بد سیاست ثمنه ده.

"ژیراردن"



خلک په دوارو ولسواکو او زورواکو حکومتونو کې سره برابر دي، څکه په لومړي کې هرڅوک هرڅه دي او په دویم کې هېڅوک هېڅ څه نه دي.



په هغه څه ځانښودنه چې زموږ له واکه بهر دي؛ په دروغو د ملت غولول او د ټولنې پر وړاندې د ورځې په نرخ سیاست کول زموږ تګلار نه ده.

"مصطفی کمال اتاتورک"



زه نه وایم چې دیموکراسي نیمګړتیاوې نه لري، خو ښکلا یې داده چې دا نیمګړتیاوې د دیموکراسۍ په خپل لاس سمېدلی شي، خو د دیکتاتورۍ خپلې نیمګړتیاوې د هغې په لاس نه سمېږي.

"آدام سمېت"



د پارلمان یو وکیل له هغو لومړیو ګامو څخه چې د دریځ پر لوري یې اخلي؛ پېژندل کېږي، چې د وجدان سپارښتنه به پرځای کړي، که د واکمن.



د سیاستوال زړه په سر کې وي.

"ناپیلیون"



د هرې خپلسرۍ په پای کې دیکتاتور حکومت راځي.

"ناپیلیون"



سیاست د سترنج لوبه ده، هغوی چې پرې نه پوهېږي، سر یې پرې نه خلاسېږي.

"ژان ویولیس"

خیني سیاستوال سري خواره څناور دي. خو چې غابنونه یې پخ شي بیا وابنه خواره شي.

۞۞۞

په سیاست کې انسان هله په اسانی غولېږي چې ګني نور یې غلولي دي.

"ژول کامبون"

۞۞۞

ښېګڼه غوره سیاست دی.

"انګرېزي متل"

۞۞۞

سیاست زړه نه لري، یوازې ماغزه لري.

"ناپلیون"

۞۞۞

په لوخ لاس مارمه نیسه.

"یوګوسلاوي متل"

۞۞۞

که خپلو نیمګړتیاوو ته مو پام وي، د نورو به رانه هېرې شي.

"عربي متل"

۞۞۞

د لاس ګنډه په غابنو مه رنځه.

"پښتو متل"

۞۞۞

د سیاست هنر د وار لټول نه، د وار کارول دي.

"فریدریک"

۞۞۞

هغه مشر خپل ملت ته ربښتینې خدمت کړای شي چې په ماتې کې نهیلی او په بري کې مست نه شي.

۞۞۞

هغه دولت چې له ملت نه ډارېږي، تل یې خوار واسکېرلی ساتي.

"فتحی الرملي"

په استبدادي حکومت کې روزنه دا ده چې په زړونو کې ډار کېږدي او څو ساده مذهبي لارښوونې زده شي. هلته له پوهې نه کرکه کېږي، ځکه چې بدې پايلې ورته لري.

"مونتسکيو"



نړۍ به هله سوکاله شي چې يو رژيم حکومت پرې وکړي.

"محمد مسعود"



تر ټولو ښه حکومت هغه دی چې د ټولنې تر ټولو وروستي غړي ته سپکاوی، ګردې ټولنې ته سپکاوی وګڼي.

"يوناني فيلسوف"



اوس څه د برخليک پوښتنه کوئ؟ سياست برخليک دی.

"ناپليون".



پر اوبو کرښه نه راکښل کېږي.

"دري متل"



د سياست په نړۍ کې دعقل و منطق خبرې تل د هغو موخو د پټولو له پاره کېږي چې له منطق و عقل سره هېڅ اړيکې نه لري.

"ګوستاولوبون"



زما ډېر وزيران د دې وړ دي چې ګاډۍ والا وای. او ډېر ګاډۍ والا شته چې د پرانسې د وزارت بشپړه وړتيا لري.

"ناپيليون"



په زور واکو هېوادو کې تر ټولو خوار هېواد هغه دی چې پاچا يې سوداګر وي.

"مونتسکيو"



د واکمنۍ تر ټولو ستر هنر دا دی چې کارکوونکي د خپل کار له لاسه زاړه نه شي.

"ناپيليون"

د یونان له اووو پوهانو څخه یې وپوښتل چې ښیږ حکومت کوم دی؟

***

آتني قانونپوه سولون وويل: "هغه چې د يوه کنځا پر ټولو اغېز وکړي"

***

بیاس وويل: "هغه چې قانون د واکمن پرځای کار وکړي"

***

فیلسوف سالیس میلوسی وویل: "هغه حکومت چې د شتمنۍ برابري په کې وي"

***

پتیاکوس ووېل: "هغه چې سم چارې په کې واکمن وي، نه بدچاري"

***

کلیوبوس وويل: " هغه چې قانون د وياند پر ځاى وغږېږي"

سرمامدرس پورتني خبرې داسې راټولې کړې: ښايي چې سپېڅلي پوهان حکومت وکړي"

***

وحشي لويزيان چې غواړي مېوه لاس ته راوړي، ونه له بېخه باسي. استبدادي حکومت هم داسې کوي

"مونتسکیو"

***

د نړۍ نیمايي بدمرغي د ربتینولۍ له پټولو نه سرچینه مومي

"سرآرتور هېلپس"

***

مختار وزير هغه څوک دی چې یوه هېواد ته د یو څه دروغ ویلو او دروغ اورېدلو له پاره لېږل کېږي.

***

که مشران وواکمن په هغو ښېگڼو وستایل شي چې نه یې لري، دا به هغه کنځاوې وي چې د جزا له وېرې پرته ورته کېږي.

"لاروشفوکلد"

***

لوړه د ټولو جنايتو مور ده، سربېره پر دې هم وینو چې دولتونه د دې پرځای چې له لوږې او بې وزلۍ سره جګړه وکړي، له جنایت او جنایتکار سره ډغرې وهي

"فتحی الرملي"

سړه وینه لرل تر تولو سترد خانګړتیا ده چې د واکمنی له پاره تاکل شوې

"ناپیلیون"



د استبدادي حکومت بنسټ ډار او د دغه ډار موخه آرامي ده، خو ښايي پوه شو چې دا آرامي سوله نه ده او د هغو ښارونو چوپتیا ته ورته ده چې پته وېره په کې ده، نو ژر به د دښمن لاس ته ورشي

"مونتسکیو"



خپلسري پاچاهان دهغه اورغوندې دي چې خپل بلوونکی هم سېزي

"هندي متل"



سیاسي اتلان چاپېریال نه بدلوي، خو له هغه بدلون سره چې چاپېریال يې ورړ دی؛ مرسته کوي

"دشتي"



د سیاست په باریکیو کې چل روا دی او لویوالی نه ژوبلوي

"مونتسکیو"



هغه چې پر خپلو ماغزو حکومت نه شي کړای، د دې وړ نه دی چې د سیاست د زینې پر لومړي پاړکي هم ودرېږي

"ګوستاولوبون"



د ټولنیز پرمختګ و سوکالی په لار کې د ناپوهو او کمزورو خبرو ته غوږمه نیسئ

"ناپیلیون"



ډېره بده ده چې په سیاست کې د چارو واګې داسې څوک په لاس کې ونیسي چې نه پوهېږي او په سرته رسولو يې نه بریالي کېږي

ګوستاولوبون

چې کومه پېښه منحته رانه شي لېونی هم واکمني کولای شي.
"آلماني متل"

❁❁❁

پاچاهان و پرګنې نه خپلا کېدونکي دښمنان دي.

"ناپیلیون"

❁❁❁

سیاست د زړه درد ته وایي.

"اجمل ختک"

❁❁❁

هغه چې پر یوه تیره ده واري لوېږي، پښې یې د ماتېدو دي.

"بېکن"

❁❁❁

واکمني هغه غر دی چې څوکې ته یې ورختل ګران او ترې رالوېدل آسان دي.

❁❁❁

سیاستوال ته نه ښایي چې غل وي، خو په غلا دې پوه وي.

❁❁❁

د سیاستپوه او سیاستوال ترمنځ توپیر دی، لومړی پرې پوهېږي نه یې کوي، دویم پرې نه پوهېږي خو کوي یې.

❁❁❁

سیاست یوازې د انساني ژوندانه د سمون و سوکالي له پاره هڅه او د پرمختګ کیلي ده، که چا بله مانا ترې واخیسته نو جنایت دی.

❁❁❁

له یساست نه دروغ بېل کړئ د هر رنځ له پاره درمل ترې جوړولای شئ.

❁❁❁

هغه چې سیاست ته راغلي وي، ورپسې مه ځئ، چې راوستي مووي، ورپسې لاړ شئ.



# ځواني

ځواني د ليونتوب يوه څانګه ده.

"حضرت محمد(ص)"



ځواني د ليونتوب، ميني او زړورتيا پړاو او د بشري اروا زړه راکښونکې بڼه ده.

"ايرانشهر"



په زړو ډېر کارونه کېداى شي، خو ځواني پرې نه پېرودل کېږي.

"رايموند"



د ځوانۍ او زړښت ستر توپير دا دى چې د لومړۍ موخه ژوند او د وروستۍ هغه مرګ دى.

"شوپنهاور"



ځواني مستي او د عقل تبه ده.

"لارشفوکولد"



ځواني د ماشوم توب و زړښت تر منځ ده او د ژوندانه د پاچاهۍ او برې ورځې په کې تېرېږي.



ځواني هم د سپېڅلې مينې غوندې يو پاى لري.

ګوېته

که د یوه زلمي د مینې مخنیوی کوی. لکه ناروغ چې په سستی گرد موی.

"دوکلوس"



ځواني هغه ستوری دی چې د ژوندانه پر اسمان یو خل راځیږي.



د هغه څه د زده کړې له پاره چې غوښتل مې، زړښت ته اړوم. او اوس دهغه څه د ویلو له پاره چې زده مې دي، ځوانی ته اړ یم.

"ژوبرت"



ناپوهي، خوښي او نا خبري چې یوځای شي، ځواني ترې جوړیږي.



د ځوانی افراط هغه پور دی چې په زړښت کې به یې بېرته ورکوئ، اوهغه څه مو چې له وجود نه په ځوانی کې له لاسه ورکړي په زړښت کې یې هیله مه لرئ.

"فرانسیس بېکن"



ځواني څپې وهي او د ژوندانه سمندر په اېشېدو راځي، په زلمیو! مخکې تر دې چې اروا مو تیاره او سړه شي، پاځئ او هڅه وکړئ.

"شیللر"



بوډاگان د منې رنګ او زلمیان یې خوند ستایي.

"یوناني متل"



زړښت د ښځې دوزخ دی.

"لارشفوکو"



زلمی د ځوانی په نښه مست وي، د چا نه اوري.

"پښتو متل"



که ځوانانو پوهه او زړو ځواک لرلای، هرڅه به سم وو.

"ایتالیایي متل"

د مشرانو درناوي وکړئ چې کشران ستاسې درناوی وکړي
"حضرت محمد ص"



ځواني د هيلو پسرلی دی

"ديکنز"



هرڅوک غواړي چې اوږد ژوند ولري، خوهېڅوک نه غواړي چې زوړ شي
"سويفت"



هرڅوک د خپل زړه په اندازه زوړ دی



# زړورتیا او سرتیري

د وګړیو پر وړانـدې د در، کمـزورۍ او نهیلـۍ خـبرې مـه کـوه.

"حضرت محمدص"



زړورتیا او مېړانــه پـه دروغــو پـه چـا پـورې نـه نښلـي، دا هغـه لـوښه ده چــې ټکي او دروغ نــه منــي.

"ناپیلیون"



دروه او ټکي تـر ډېره د کمزوریـو کـــار دی.

"لاروشفوکولد"



زمرۍ چې مړ شي، ګیدړ یــې هـم لکـۍ راکـاږي.

"اسپانیایي متل"



پـه نـړۍ کـې دوه ځواکونـه دي: تـوره او تدبـیر، خـــو تدبـیر تـل توره مــاتوي.

"ناپیلیون"



مېړانــه او زړورتیــا د بشـر ښه لـوښه نـه ده، دا لـوښه دهغــو بــدوردو خلکو ځانګړتیا ده چې تـاریخ یـې "لـوی مېړونـه" بـولي.

"وېلتر"

د بې زړو ملګري تـه زړورتيا ناشـونې ده.

"آلماني متل"



زړورتيا د انسانيت سـتره پـېژندويـي ده.

"دانيل وبستر"



هغه څوک زړور دی چې ډار وپـېژنـي او بـری پـرې وموميـ.

"نيچه"



ربنتيني اتل هغه دی چې د نورو د خوښی لامل شي.

"مونتولان"



د نـړی نوميـالي، زړور وګړي وو.

"ستون"



مېرانـه د بـري لومـړی آړ دی.

"کامپ پل"



هغه چې دخپلې کورنی د ساتنې پـه لار کې مړ شي؛ شـهيد دی.

"حضرت محمد(ص)"



د يوه درناوی او د بـل سـپکاوی د مېړانـې نـښه نـه ده.

"اسپانوي متل"



زړور يـوه ورځ مـري، بې زړه هـره ورځ.

"پښتو متل"



زړورتيا ګوابښ ته تـر مخـامخ ورتـګ بـل څه نـه دي.

"پي يروبر"



لـږ ځانځانـي او يـوڅه ځنـاورتوب لـه ډېرې خپلسـری او نـاپوهـی سره ګډ کړئ، هغه څه چې تـرې جـوړېږي نـوم يـې "زړورتيـا" ده.

"سن اکسوپري"

کله چې ما خوروي. هغه کوم خپله اروا دومره لوړه کړم چې کړاو یې راونه رسېږي.

"ژیراردن"

※※※

د یوه غښتلي او پیاوړي زړه له پاره هېڅ کار ناشونی نه دی.

"دیروزک"

※※※

پیاوړي مېړونه په مبارزه کې روزل کېږي، نه د هوسایني تر سیوري لاندې.

"پ. ژي. اسا"

※※※

د باز له ځالې باز الوزي.

"پښتو متل"

※※※

هغه سرتېري چې د هېوادنی دندې په لار کې په خپلو وینو رنګېدلي، په دې نړۍ کې نوم و ویاړ ګټي او په هاغه کې جنتي کور.

"حضرت علي[ک]"

※※※

له ماتې نه ډار، ماتې راولي.

"ناپیلیون"

※※※

د ګیدړو اوردو چې مشر یې زمری وي، د زمریو تر اوردو چې مشر یې ګیدړ وي، غوره دی.

"ځلورم شاپور"

※※※

بری د کلکو دی.

"ناپیلیون"

سرتېري نه هر هغه ځای چې تر خپل بیرغ لاندې په کې ولاړ وي؛ پردی نه ښکاري، ځکه په هر ځای کې چې خپل بیرغ رپېږي هماغه ټاټوبی دی.

"ناپیلیون"

که انسان یوه ورځ هرو مرو مري. نو په خدای چې د توري مرګ ډېر ویاړلی دی.

حضرت حسین رض

***

د سرتېرې خت پولادینه زغره ده چې د مېړانې او بلهارې په لاس تکره مېړنیو ته وراغوستل شوې. دا ویاړلی خت په ژوندانه کې د سر لوړې او تر مړینې وروسته جنتي کالي دي

"حضرت علي ک"

***

هخامنشي شاهنشاه "خشایارشا" چې یونان ته لښکر ولېږه. چا د سپارت پاچا "لیونیداس" ته چې د یونانیانو مرستې ته راغلی و؛ وویل: د ایراني جګړه مارو شمېر دومره ګڼ دی چې که غشي یې والوزول لمر به پټ کړي. لیونیداس ځواب ورکړ: دا خو لا ښه ده، په سیوري کې به وجنګېږو!

***

یوه غونډ مشر د برید بولنه ورکړه، یوه ټولي مشر وویل: "که وړاندې لاړ شو، په مخ کې مرګ دی" غونډ مشر وویل: "رښتیا ده چې په مخ کې مرګ دی، خو که بېرته وګرځو شاته ننګ دی."

***

نومیالی سکندر چې جګړې ته راووت، سلاکار یې ورته وویل چې د ایران پر شاهنشاه د شپې برید وکړي، ده ځواب ورکړ: غواړو چې برې راغلا کړو؟

***

ډېر د دې له پاره برېتونه پرېږدي چې څوک یې د ډار په وخت کې د شونډو رپا ونه ویني.

"پوهاند ډاکتر زیار"

***

یوه غونډ مشر ته یې وویل: "دښمن ډېر دی، وبه یې ځارو چې ویې شمېرو" هغه ځواب ورکړ: "چې ماتې مو ورکړه بیا به یې وشمېرو".

يوه سرلښکر وليدل چې لښکر يې له جګړې نه مخ ګرځوي، لامل يې وپوښته، ورته وويل شول: "مرمی او باروت نه لرو!" هغه وويل: "توري او نوکان هم نه لرئ؟"

⁂

د پرانسې پاچا څلورم هانري په يوه جګړه کې تر څلورو زرو ډېر جنګيالي نه لرل او دښمن يې دېرش زره تنه وو، چا ورته وويل: "له دغه واړه لښکر سره به څرنګه پردغه ځواکمن دښمن بريالی شې؟" هغه ځواب ورکړ: "ته مې ټول لښکر نه وينې، زما خدای او رښتينولي ورسره نه شمېرې!"

⁂

که اتل کېدای نه شې لږ تر لږه مېړه اوسه.

"ګوېټه"

⁂

په مروچل کې خوب نارينه او په بستره کې دمه ښځينه خوند لري.

⁂

زړور هغه دی چې ډار وپېژني او پرې لاسبري شي.

"نيچه"

⁂

د لښکر د بري تر ټولو غوره وسله ډاډ دی.

"کيخسرو"

⁂

په جګړه کې جنګيالي ته تاوده خواړه او تاوده کالي ورکړه په تاوده زړه به وجنګېږي.

⁂

هغه ملت چې له شهادته وېرېږي، ښکېل پاتې کېږي.

⁂

د سپېڅلې جګړې په ډګر کې تويه شوې وينه، تر هغې وينې چې لا په رګونو کې چلېږي د يوه ملت د ژوندانه له پاره ډېر ارزښت لري.



# خپلواکي

خپلواکي ورکول کېږي نه، ویې غواړئ.

"سید جمال الدین افغان"



ازادي تر پادشاهیه لاتېرې کا        چې د بل ترحم لاندې شي زندان شي.

"خوشال ختک"



ژان ژاک روسو! زه ستا د وینا یو ټکی هم نه منم، خو د ژوندانه تر پایه به هڅه کوم چې ته د ویلو واک ولرې.

"وېلتر"



هغه چې د ځانساتنې له پاره خپلواکي پرېږدي، د خپلواکېدو وړ نه دی.

"فرانکلن"



د خپلواکۍ تر شرابو خواږه او خوندور شراب نه شته، خو د دې له پاره چې انسان یې په څښلو مست نه شي او کوکې ونه وهي، ښایي منځلارې اوسي.

"لافر"

تول دي هڅه وکړي چې په خپل ژوندانه کې د خپلواکۍ د مانی بنسټ ته کلکه تیره کېږدي.

"ابرت سیسیل"



کله، کله ښايي د خپلواکی ونه د ښکېلاکګرو په وینه خړوب شي.



هرڅومره چې د يوه ملت تمدن اوچت وي، هماغومره د ګروهو (عقیدو) مخنیوی په کې لږ وي.

"ډاکتر اراني"



هغه انسان چې خپل فکر و ګروهه نه شي څرګندولی، په ژوندیو کې نه شمېرل کېږي.



هغه چې د نورو په کړولو کې خپله خوښي لټوي، هېڅکله به خوښي ونه ویني.

"بودا"



رښتیني آزادي دا ده چې هرچا ته د هر ډول پرمختیا او بشپړتیا لارپرانیستې وي.

"ډاکتر شفق"



د تاريخ يوازينی تلپاتې ارزښت خپلواکي ده.

"البر کامو"



سکندر، یوه "دیوژن" ولید چې د انسان هډوکیو ته ځیر و، ترې ویې پوښتل چې څه لټوې؟ ډیوژن وویل: ستا د پلار او د هغه د مریانو د هډوکیو تر منځ توپیر لټوم چې هېڅ یې موندلی نه شم.

"پلوتارک"



که یوه ملت تر خپلواکۍ بل څه غوره وګڼل، هرڅه به له لاسه ورکړي.

"ساموست موام"



ماته یا خپلواکي راکړئ یا مرګ.

"پل هانري"

زورواکي بـې حايـه هـڅه کـوي چـې د بنديـخ لـه لارې د بدمرغيو مخـه ونيسـي. لـه دې نـاخبره چـې همـدا بنديخونـه بلـه وسـله ده چـې زورواکي نـوره هـم ګرکجنـوي.

"مونتسکيو"



خپلواکـي هيڅکلـه زمـوږ انتظـار نـه کـوي، مـوږ تـه ښايـي چـې لـه زړه نـه يـې پـه لـټه کـې شـو، د تـاريخ د کـوم ګوټ پـه کـرښه کـې مـو لوستلي چـې خپلواکـي او ديموکراسـي وړيـا لاس تـه راغلـې وي؟

"امرسون"



خپلواکـي دې تـه نـه وايـي چـې هـرڅوک هـرڅه وغـواړي، همـاغسـې وکـړي، رښتينـې خپلواکـي هغـه ځواک دی چـې هـرڅوک د خپلو دندو سرته رسـولو تـه اړ باسـي.

"جورج ماکدونالد"



خپلواکـي او ديموکراسـي فطري ده، يـو ملـت د ډانـګ پـه زور خپلواک و ديموکرات کـېدی نـه شـي.

"مونتسکيو"



د ځوروونکيـو او سـرې وژونکيـو قوانـين او چلـن زمـوږ د بـاطني خپلواکـی غوښتنـې پـر وړانـدې چـې زمـوږ انسـانيت تـرې جـوړ دی؛ هيڅ نه شـي کـړی.

"ژول سيمون"



د لنـډې مـودې لـه پـاره دې خپلواکـي لـه لاسـه ووځـي چـې د تـل له پاره وسـاتل شـي.

"مونتسکيو"



په هغه هـېواد کـې چـې د ډنـدې پـر ځای کولـو حـس شاته ولـوېد او ډېر غوښتنه او هوس پالنـه رامخـې تـه شـوه، هلتـه خپلواکـي نـه شـي ټينـګېدلی.

"لاکو"

که غواړئ چې خپلواک اوسئ، "رښتیا" ونمانځئ.

"شیخ محمد خیاباني"



د خپلواکۍ هیله د ښکېلاک و تېري همزولې ده. خپلواکي غوښتونکي غورځنګونه تل د زور واکۍ د نادودو او د تېرېرو د کړاوونو له امله منځته راغلي دي.

"ویلیام دوګلاس"



دیموکراسي هله رښتینې کېدای شي چې د یوه ملت غړي د خپلو متو له زور یا کار نه ګټه واخیستلای شي او هم د ګروهنې څرګندولو له لارې خپل اروایي ځواک پرکار واچولای شي.



خپلواکي د یوه سړي له پاره نه ځانګړې کېږي، د هرچا خپلواکي د نورو له خپلواکۍ سره تړلې ده.

"پول لانژون"



که دین نه لرئ، لږ تر لږه خپلواک اوسئ.

"حضرت حسین رض"



بل هېڅه یو ملت دومره تیټ و رټلی نه ساتي، لکه دیني زورواکي چې یې ساتي.

"ناپلیون"



خپلواک پلوې تولنې، قانون پلویو واکمنو ته سپېڅي (د امن ځایونه) دي نه خند.

"تالیران"



ډېر چې سره راټول شي، مریتوب دې نه منې.

"تیت نیو"

د خپلواکۍ سپېڅلی نوم چې د توپیر و زورواکۍ پر وړاندې د بري پرېښته ده: تر خپلسرۍ، ناآرامۍ او بدوېلو زرګونه ګامه واټن لري.

"ویلیام دوګلاس"



هلته چې بل خپلواک وي. ځانګړې خپلواکي پای ته رسېږي.

"د بشر د حقوقو اعلامیه"



هو! ځینو ته خپلواکي بل ډول ښکاري او منلی یې نه شي، کله کله پاکه هوا هم هغه چا ته چې په ناپاکو ځایو کې اوسېږي، تاوان پېښوي.

"مونتسکیو"



راته ښکاري چې زور بـه څه ونـه کړی شـي.

د بریتانیا د بهرنیو چارو وزیر "بوین"



ژونـدی دې وي هغـه ملـت چـې د خپلواکـۍ د ژونـدۍ سـاتلو لـه پاره ژونـد ورتـه ګران دی.

"شیخ محمد خیاباني"



ټول واکمـن دې دا پنـد نـه هـېروي چـې خپـل مخـالفین دې پـه زور له ډګره نـه شـړي.



یه خپلواکۍ! په ډېره خواشینۍ وایم: "بشر ستا د لرلو وړ نه دی!"

"تورګر"



خپلواکي یـوه ملـت تـه نـه راکښتـه کـېږي، ملـت دې هغـه لاس تـه راوړي، ځکـه خپلواکـي هغـه نعمـت دی چـې یـوازې پـه هـاندوهڅو لاس تـه راځي.

"ګولنن"



د ګروهې خپلواکي د هـر سیاسـت پـه سـر کـې ولاړه ده.

"شیخ محمد خیاباني"

حق (رښتيا) ښې خوا. زور کيڼې خوا. ربا پر تنده او وينه زموږ ترېښو لاندې ده. مړه دې وي هغوی چې غواړي ژوندي پاتې شي او خپلواکي مړه ووينې

"ماکسيم ګورکي"



هره پرېکړه چې خپواکي له ګواښ سره مخامخوي. د منلو نه ده، که څه هم چې جګو او زورورو واکمنو کړې وي

"سعدزغلول پاشا"



خپلواکي تر ټولو ستره ډالۍ ده چې انسان ته ورکړل شوې، د هغې پر وړاندې ټولې ورکړې بې مانا او بې ارزښته دي

"اپيکتتوس"



خپلواکي دې ته وايي ې څوک له قانون نه سرغړونې ته اړ نه شي

"مونتسکيو"



په زرو اخيستل شوی مريي هم د خپلواکو لويانو او واکمنو غوندې ژوندلاس ته راوړلای شي

"اپيکتتوس"



د نړۍ پر مخ د انسان ټولې هڅې او درد زغمنې که له عقل سره سمون لري پايې نه لري؛ د خپلواکۍ له پاره دي

"توماس کارلايل"



په خپلواکۍ کې ترلی اوسه

"شيخ محمد خياباني"



د خپلواکۍ مې يوازې څلی وليد

"ژانژاکروسو"



څومره چې پنجره تنګېږي، آزادي خوږېږي

"آلماني متل"

يه خپلواکي! څه جنايتونه نه دي چې ستا په نامه يې نه کوي.

"مېرمن رولاند"

ﺿﺿﺿ

چې د نورو مريتوب مني، ړانده به وي.

"علامه اقبال"

ﺿﺿﺿ

خپلواکي د يوه نه ده، د ټولو ده.

"هربرټ سپېنسر"

ﺿﺿﺿ

خپلواکي نوی مذهب دی، زموږ د مهال مذهب!

"هاينه"

ﺿﺿﺿ

چې د نورو خپلواکي نه مني، په خپله هم د خپلواکۍ وړ نه دی.

"لينکن"

ﺿﺿﺿ

انسان هماغه شيبه چې د خپلواکېدو پرېکړه کوي، خپلواک دی.

"ويلټر"

ﺿﺿﺿ

هرڅومره چې تمدن مخ ته ځي، ځانګړې ځواک کمېږي.

"ارتل هليشر"

ﺿﺿﺿ

که مريتوب بد نه وي، نو "بد" هېڅ نه شته.

"لينکن"

ﺿﺿﺿ

د خپلواکۍ نيالګی چې ولې ونيسي په بيره وده کوي.

"جورج واشنګټن"

ﺿﺿﺿ

انسان خپلواک زېږېدلی خو هرځای په بند و زنځير کې دی.

"ژان ژاک روسو"

ﺿﺿﺿ

هغه چې پر خپل ځان واکمن نه وي، د نورو تر واکمنۍ لاندې راځي.

"علامه اقبال"

# جګړه او سوله

جګړه چل دی.

حضرت محمد(ص)"



په جګړه کې داسې شېبې راځي چې تر ټولو زړور سرتېری هم تېښتې ته په کې چمتو کېږي.

"ناپلیون" .



جنګیالی د خپل حق له پاره جنګېږي او جګړمار د جنایت له پاره.

"پوهاند ډاکټر زیار"



جګړه د ژوندانه تلپاتې قانون او سوله د دوو جګړو تر منځ "ارام شئ" ده.

"نیچه"



که د وسلې پرځای له ښوونکي سره د نړۍ جګړې ته لاړوای، ټول دښمنان به له منځه تللي وو.

"بیسمارک"



ټولې جګړې درې سرچینې لري: پیسه، ښځه، ځمکه.

"هندي متل"

بشري وګړي دې ته نه چمتو کېږي چې په ګډه له لوړې مړه شي، په دې توګه به د دوډۍ د وروستي کپ پر سر چې ښايي ووېشل شي؛ جګړه ونښلي.

"چرچېل"

❀❀❀

د سولې په بڼ کې د سوداګرۍ ونه وده کوي.

❀❀❀

جګړه، قانون وژني.

"سيسرون"

❀❀❀

دويمې نړيوالې جګړې وښوده چې د هېوادونو تر منځ پولې او بريدونه کومه مانا نه لري او د نړۍ د ملتونو برخليک يوتربله تړلی دی.

❀❀❀

سړی په جګړه کې ژر زړېږي.

"ناپيليون"

❀❀❀

د اوښکو په وچولو کې ويار دی، نه په بهولو کې.

"بايرون"

❀❀❀

له دښمن سره پرله پسې جګړه مه کوئ، ځکه چې بيا به ستاسې په ټولو جنګي رازونو پوه شي.

"ناپيليون"

❀❀❀

په سوله ويلو نړۍ ته امن نه راځي.

"ناپيليون"

❀❀❀

کړه خوله په سوک سمېږي.

"پښتو متل"

❀❀❀

کلک مورچلونه د کوماندان په وړتيا او زړورتيا ساتل کېږي، نه د مورچل په کلکوالي.

"فريدريک"

چې مرګ دې ومانه برې به وکټې.

"ویکتور هوګو"



د نړیوالې سولې د پاینښت له پاره د ملتونو نېږدېوالي ته اړتیا ده، نه د دولتونو.

"د بریتانیا د بهرنیو چارو وزیر "ایدن"



هغومره پیسې چې پر جګړو لګېږي که څمکه پرې وپېرودل شي، ترهغو څمکو چې په جګړو او وینو تویولو یې لاس ته راوړي؛ ارزانه پرېوځي.

"بنیامین فرانکلین"



ترنیولو وروسته نیوونکي د وژلو حق نه لري، ځکه نیول شوي خو نوره ځانساتنه نه شي کړای.

"مونتسکیو"



یوازې په سوله کې د یوه هېواد وګړي د جګړې درون بار احساسولی شي.

"ګوستاولوبون"



سوله هم د جګړې غوندې ستراتیژي ته اړتیا لري.

"ستدهانکاک"



که یوه ورځ دې له نیږدې نه د جګړې ډګر او په هغه کې د وینو تویېدو ننداره ولیده، خدای‌ته به زارۍ کوې چې بیا داسې ورځ درونه ښیي.

"انګرېز سرلښکر ولینګتون"



دویمه نړیواله جګړه روانه وه، همدا مهال په یوه غونډه کې له ادولف هیټلر نه پوښتنه وشوه چې د جګړې په پای کې به د دومره

ورانيـو او ويجـاړيو تـاوان د چـا پـر غـاړه وي؟ هغـه ځواب ورکـړ ښکـاره ده، د هغه چا پر غـاړه چـې جـګړه وبـايلي

●●●

هماغسـې چـې "ښه" "بـد" پـټوي، بـرى هـم نـه پـريږدي چـې د جګړې کرغيړنې پـېښې ښکـاره شـي

"انګرېز سمندر مشر "ناپير"

●●●

د جګړې په زيانونو په سوله کې پوهـيږو او لـه نـاچـارى يـې زغمـو.

"فرانکلن"

که د پېښو بېلابېل اړخونه مو پېژندلاى شواى، کېداى شي چې د ګټې او تاوان تر تللو وروسته پوهېدلى واى چـې جـګړه ګټوره نـه ده، ځکـه تـر دومره تاوانونو وروسته نيونې او پرانيستنې ارزښت نه لري.

"بايرون"

●●●

پـه تـاريخ کـې د سـولې تـر ټولـو ښکلـې ژمنـه د "کارتـاژ" لـه اوسېدونکيو سره د "ژېلن" تـړون و. ژېلـن لـه هغـوى نـه وغوښتـل چـې د خپلـو بچيـانو د بلـهارى (قربـاني) دود خوشـې کـړي. څومـره ښکلـى کار! وروسته له هغـې چـې درې سـوه زره کارتـاژيـان مـات شـول، داسـې غوښتنـه تـرې کـېده چـې نـه يـوازې دوى تـه، لا چـې ټول بشريت تـه ګټوره وه.

"مونتسکيو"

●●●

جګړه په پيـل کـې هېښنـده نـوم دى، خـو هغـوى چـې خپـل ځاى او حق پېژني له کـړاوه يـې نـه ويريږي.

"فريدريک"

●●●

دا سوله چې ټول يـې خبرې کـوي تلپاتې نـه ده، د دمـې لـه پـاره ده چـې پـه تـرڅ کـې يـې جګړماران د راتلونکيـو جـګړو لارې چـارې ولټوي.

●●●

د جګړې ترماتې وروسته د وګړيو مرګ ژوبله ارزښت نه لري،ستره بدمرغي د پاتې شويو وګړيو مات زړونه او ناهيلي ده.

"فريدريک"

❁❁❁

په جګړه کې يو ګام د سلو کلو لار ده.

"پښتو متل"

❁❁❁

هغه څه چې په وسله لاس ته راغلي، کېداى شي چې په تړون له لاسه ووځي.

"ونتسکيو"

❁❁❁

هغه چې په جګړه کې پر بخت ډډه نه لګوي تر ټولو پياوړى دى.

"فريدريک"

❁❁❁

جګړه جواري ده، کېداى شي چې تکړه لوبغاړى يې هم بايلي.

"مصطفى کمال اتاتورک"

❁❁❁

جګړه د نورو لوبيو په ډاډ د سياست غځول دي.

"کلوزوايتس"

❁❁❁

په هره جګړه کې بريالى هغه څوک دى چې يوه شيبه نور هم ټينګ شي.

"ولينګتن"

❁❁❁

د بې ګواښه (بې خطره) جګړې برى بې وياړه دى.

"ګودني"

❁❁❁

د سولې پر سبا ورځ د ملتونو رښتينې جګړه پيلېږي او دې اقتصادي، صنعتي او ټولنيزو جګړو په بنه ځان څرګندوي چې د ملتونو په برخليک کې تر پوځي جګړو ډېرې اغېزناکې دي.

"ګوستاولوبون"

د جګړې ستر لامل له جګړې نه وېره او د هغې د پیلېدو اټکل دی.

⁂

اروپا به د خپلو واکمنو او پوځي مشرانو لـه لاسه ړنګه شـي.

"مونتسکیو"

⁂

زما په اټکل، خـدای، جـګړه د سـولې پـه خونـد د پوهـېدو لـه پـاره جوړه کـړې ده.

"کاوراني"

⁂

جګړه که هر څومره پیـاوړي وي، بـې غولولـو نـه کـېږي.

"بوذرجمهر"

⁂

جګړه د پرمختـګ مـور ده.

"تریشګه"



# لویوالی او ویاړ

ژوندی ځان پر ځمکه ښخ کړه لکه تخم
که لویي غواړې د خاورو په مقام شه

رحمان بابا



هغه څوک چې مشر کېدلی نه شي، کشري دې ومني.

"نیچه"



هېڅکله نه غواړم چې څوک رانه وډار شي، زما هیله دا ده چې د ربښتینولی له مخې د درناوي وړ شم.

"زغلول پاشا"



مور ټول یوشان له مینډو زیږېدلي یو، یوازې ښه والی او پرهېزکاري مو تر منځ برید ټاکي.

"وېلتر"



ستر و ویاړلي مېړونه هېڅکله نه مري، ځکه دوی د راتلونکیو کولونو (نسلونو) په زړونو کې ښخ دي.

"نوسیدید"

کرکه ببنل کېږي خو سپکاوی نه.

"نروال"



شرافت هغه غشی دی چې یو ځل والوت بیا نه راستنېږي.



پاکلمني او ویاړ د نرۍ تر شتمنیو غوره دي، ځکه چې توی شوی ویاړ په زرګونو پرتمینو مانیو او د سرو او سپینو په همیانیو بېرته لاس ته نه راځي او ویجاړ شوی دین پرې نه رغېږي.

"حضرت علي[ع]"



درنېدل، په ټول ژوندانه کې د غوره ورتیاوو لاس ته راوړل دي.

"مېرمن دلامبر"



هغه څه چې زموږ په دننه کې نه شته، په بهر کې یې لیدی نه شو. که په زړه کې مو لویوالی و، هغه به په پنډي او جاروګر کې هم ستر ګو ته درشي.

"امرسون"



بېړنی د ځان دښمن دی.

"ایټالیایي متل"



که شتمني مو له لاسه ورکړه پروا نه شته، خو چې زغم له لاسه ورنه کړئ.



هغه ته چې ورو او پرله پسې لار وهي، هېڅ لار اوږده نه ده.

"لابروير"



چې یوه انسان ته وار ورنه کړل شي، یوازې ورتیا به د هغه په پرمختګ کې اغېزونه لري.

"ناپلیون"

هغه چې په بري کې خپل واکي را ټینګ کړي، یو نوی بری یې موندلی دی.



نه پوهېږم چې نیکه مې څوک و، خو دا ټکي راته ارزښتناک دي چې کړوسی به یې څنګه سړی شي.

"لینکن"

چې له پښو ولوېدې، هرڅوک به کرکه درنه کوي.

"ختیز متل"

هغه چې هرڅه ویني او اوري خو اغېز پرې نه کوي، زه به له ده سره هیڅ کار ونه لرم.

"پرسیس"



# تاریخ

د وګړیو له پرېکړې پرته، د سبا ورځې تاریخ اټکلولای نه شو، که یو ملت د فاشیزم نړۍ لید ته غاړه کېږدي، ګانده (راتلونکې) به یې له فاشیزم پرته بل څه نه وي.

"ژان پل سارتر"



په تاریخ کې داسې پاچاهان لږ تېر شوي چې د پرځولو وړ نه وو.

"ناپيليون"



تاریخ د پاچاهانو سلاکار دی.

"دموستنس"



د تاریخ یو کتاب د پېښو د رښتینې څېړنې پرځای د هغه د لیکوال نړۍ لید راښيي.

"ګوستاولوبون"



تاریخ نه غولېږي او د مهال ګړندی بهیر نه درېږي.

"شیخ محمد خیاباني"

تکړه نومیاي او ستر اندوال تاریخ جوړوي. ځکه تاریخ د بشریت ژوند ځېري چې د نومیالیو مېړونو، لارښوونکیو، پاچاهانو، روحانیونو، فلاسفه وو او سیاستوالو تر واک و اغېز لاندې یې کار کړی دی.

"اسمایلز"

❁❁❁

د طبقاتي مبارزو پایله تاریخ دی.

❁❁❁

د یوه ملت تاریخ ګلبڼ ته ورته دی او هنرمن و حساس وګړي یې ښکلي ګلان دي.

❁❁❁

تېر مهال د ګاندي ډېوه ده.

❁❁❁

د نړۍ تېرو سترو پېښنو ته ځیر شئ، بیا به زما غونډې وپوهېږئ چې ټول لوی جنایتونه په کوچنیو لاسونو سرته رسېدلي دي.

"اګارادو"

❁❁❁

هغه هېواد چې تاریخ نه لري، مړ دی.

"سن لولی"

❁❁❁

د تاریخ لوستل مو له راتلونکیو تېروتنو نه ژغوري.

❁❁❁

مطبوعات د نوي تاریخ بنسټ دی.

"پوانکاره"

❁❁❁

هغه کولونه (نسلونه) چې په خپله په یوه مهال کې ژوند کوي، د هماغه مهال یا پړاو په اړه قضاوت نه شي کړای، ځکه، که ژوندي هرڅومره ناپلوي هم شي، نو ناپلوي به یې د مړیو په اړه وي.

"ګوستاولوبون"

❁❁❁

دتېرو شویو دکړنو ارزښت دې دټولنې دکتې او تاوان په تله وتلل شي.

اوسنی پېښې د تېر مهال ژېړنده او د راتلونکې ژېړندويې دي.



تاريخ رښتينې فلسفه ده.

"ناپيليون"



د تاريخ بهير په هېڅډول تېر ويستنه او ځانګړيو موخو نه ښلارې کېږي. هغوی چې غواړي د تاريخ د سپېڅلتيا پر وړاندې خنډ شي او لمر په ګوتو پټ کړي؛ بې ځايه هڅې کوي.

"سيد ضيا الدين طباطبايي"



هرتاريخي پړاو چې د يوې ټولنې د ژوندانه په جوړښت کې منځته راځي، د يوه تاريخپوه په قلم يا د يوه واکمن په فرمان بريد ورته نه شي ټاکل کېدی.

"شيخ محمد خياباني"



له امريکايي تاريخپوه "چارلز برد" نه پوښتنه وشوه چې د بشريت د تاريخ لنډيځ څه دی؟ ويې ويل:

۱- خدای هغه څوک چې غواړي ورک يې کړي؛ د مشرۍ په لېونتوب يې اخته کوي.

۲- د خدای ژرنده وروګرځي خو سم وړه کوي.

۳- مچۍ هماغه ګل بلاربوي چې شيره يې ترې اخيستې وي.

۴- تياره چې خپره شي، ستوري ځلېږي.



په تاريخ کې د يوه هېواد لوېوالی د جګړې او برې په ډګر کې د هغه د زامنو د زړورتيا له امله نه دی، لوړوالی دا دی چې د ستونزو او سختيو پر وړاندې ټينګ پاتې شي.

"ډاکټر ستريزمان"



څومره چې تېرمهال زانه لرې کېږي، هماغومره ښکلی کېږي.

مور لاتراوسه تاریخي پړاو ته ورننوتي نه یو. د بشریت تاریخ به هله پیل شي چې بشر له ټولو رنځونو او کړاوونو نه خلاص شي.

"فتحی الرملی"



د تېرو ویاړنو تاریخ چې د وګړیو په فکر کې د پخوانیو نومیالیو او اتلانو د کړو، وړو یادونه ژوندي کوي، د ملت اروا راپاروي او لویوالي او لوړتیا ته یې هڅوي.

"اسمایلز"



تاریخ د سترو مېړونو له ژوندانه نه سرچینه مومي.

"کارلایل"



تاریخ، د بشر د جنایتونو او بدبختیو انځور دی.

"وېلتر"



تاریخ د تېر بشریت د ژوندانه لویه هېنداره ده، چې د ملتونو د بدمرغیو، ماتیو، بریاوو او بریالیتوبونو لاملونه څرګندوي.



تاریخ د ژوندانه ستر ازمېښتون (لابراتوار) دی.



زویه! سره له دې چې زه د پخوانیو ملتونو هممهالی نه یم، خو د هغوی تاریخ مې په ځیر لوستلی او د بشر لوړې ژورې او د ملتونو قوانین مې پېژندلي دي. ما د هغوی تاریخ داسې هراړخیز ولوست او پرې پوه شوم، لکه له هغوی سره مې چې ژوند کړی وي او د ژوندانه په پېښو کې چې ورسره همګام وم.

"حضرت علي ع"



# سوکالي

د نورو اوښکې وچول او هغوی ته خوښي وربښل غوره سوکالي ده.

"بودا"



انسان د خپلو غوښتنو د ترسره کولو له لارې، خوښي نه شي موندلی، هغه مهال یې دې بریا ته رسېدلی شي چې پر دغو غوښتنو پښه کېږدي.

"اندرې ګید"



سوکالي هغه چا ته راځي چې د نورو د سوکالۍ هڅه کوي.

"آبه دولیل"



سوکاله انسان هغه دی چې پېښو ته په موسکا او لږ څه ځیرتیا وګوري.

"میترلینک"



هوښیار سړی هرې ترخې پېښې ته چمتو وي.

"محمد حجازي"



له رښتینې سوکالۍ نه سوکالي زېږي، دالږی به تل روانه وي.



انسان به تر هغې سوکاله نه شي چې د نورو د سوکالۍ هڅه ونه کړي.

"دوسن پیر"

تر فکري آرامۍ ستره سوکالي نه شته.

"بودا"

تر هغې چې ناتار و جنايت شته. هېڅ نه ليدل او نه اورېدل زما له پاره لويه سوکالي ده.

"ميکلانژ"

***

مرګ کوچنی ګڼل د سوکالی غوره لار ده.

"مونتن"

***

سوکالي دا ده چې د هرڅه برید وپېژنو او درناوی يې وکړو.

"رومن رولان"

***

د خپل ځان او سوکالی تر منځ مو په خپل لاس دېوال جوړ کړی دی.

***

د سوکالي درې لارې دي: بدي نه کول، بدي نه ليدل او بدي نه اورېدل.

"چيني متل"

***

ما وليدل چې د انسان سوکالي د هغه په خپل لاس کې ده.

"لينکن"

***

د انسان خوښي او سوکالي دوه سرونه لري: يو يې پرده پورې تړلی او بل يې پر تهولنه پورې.

"ډاکتر رضا زاده شفق"

***

سوکالي هغه ګل دی چې د يوه کمزوري باد په رااولوتلو رژېدای شي.

***

سوکالېدل بس نه دي، هغه څه چې ارزښت لري دا دي چې پوه شو چې سوکاله يو.

"موريس ميترلينک"

***

همدا چې ينو ګټور کار سرته رسوئ سوکاله ياست، ګټور کار و ور و غټ نه لري.

لرد آويبوري

سوکالي هغه ده چې ورکړل شي.

"ف. کوپه"

❁❁❁

خوښي هغه درمل دي چې طبیعت وړیا رابښلي.

"باریس ساخالوف"

❁❁❁

د پوهې او سوکالۍ ترمنځ دا توپیر دی چې ځانته سوکاله ویل سوکالي ده خو ځانته پوه ویل ناپوهي.

"کولتون"

❁❁❁

پوهه سوکالي راولي.

"سپینوزا"

❁❁❁

د ځمکې پر مخ د سوکالۍ د ډېرولو لار دا ده چې وویشل شي.

"پول شرر"

❁❁❁

سوکاله ژوند ساده ژوند دی.

"شانفور"

❁❁❁

سوکالي هغه مرغۍ ده چې د مینې خالې ته راشي او بېرته ژر والوزي.

❁❁❁

سوکالي دا ده چې انسان هغسې نړۍ چې غواړي يې ويې ويني.

"کورنر"

❁❁❁

زه به خپل هنر یوازې د خوارانو او بېوزلو د سوکالۍ په لار کې وکاروم.

"بتهوون"



# بدمرغي

انسان ترکاني کلک تر ګل نازک دی.

"پښتو متل"



په بدمرغۍ کې دا ښېګڼه شته چې رښتيني دوستان راپېژني.

"بالزاک"



بدمرغي اروا روزي.

"ويکتور هوګو"



انسان په بدمرغۍ او بې وزلۍ کې ځان پېژني.

"آلفردوموسه"



بدمرغي ورتيا روزي.

"ويکتور هوګو"



ستره بدمرغي داده چې د زغملو نه وي.

"باس"



بدمرغي د سوکالۍ ترځنګ ولاړه ده.

"يوګوسلاوي متل"

بدمرغي له هغې کرکې نه راننوځي چې پرانيستې مو پرېښې ده.
"چکي متل"



يوازې بدمرغي ده چې بشپړه وي.
"بالزاک"



خوندونه سرسري او دردونه ژور وي.
"چيني متل"



يوه بدمرغي بله زېږوي.
"ډنمارکي متل"



ترهغه چې له خپل مهال نه وروسته پاتې وي، بل بدمرغه نه شته.
"سعيد نفيسي"



په هره بدمرغۍ کې يوه ښېګڼه هم شته.
"پرانسي متل"



که منل کېدای، ما به دعا کړې وای چې په ډېرو سختيو او ستونزو اخته شم چې په پای کې مې ډېره هوساينه او سوکالي په برخه شي.
"يونيان"



د بدمرغۍ پياوړی لاس د سوکالۍ اوهوساينې تر ګوتو انسان ته هره تېروتنه او نيمګړتيا ښه څرګندوي، ځکه بخت و سوکالي هېڅکله د شيانو رښتينی څرنګوالی د انسان سترګو ته نه ښکاره کوي او ددې نړۍ په پټو چارو يې نه خبروي.
"دانيال"



د بشر ټولې بدمرغۍ د طبقاتي توپيرونو زېږنده دی.
"پي يرلورو"



که د ګاونډي خوښي مې نه لیدلای، خپل غمونه مې زغملای شول.
"پرودونک"



د نورو په هوساینه رخه کول، ځانته په خپله سزا ټاکل دي.

"پټرن"



چې بدمرغي نه پېژني، هغه به د سوکالۍ لاس ته راوړل او ساتل هم زده نه کړای شي.

"داویدوایټ"



که د بدمرغۍ څپه هرڅومره لویه او جګه وي، خوښي هرومرو د ځان له پاره یوه وچه څنډه موندلی شي، او که ویې نه مونده لامبو به زده کړي.

"سپوژرون"



د زړښت د ورځو سوکالي او بدمرغي د تېرو کړنو نچوړ دي.

"بنت بود"



د بدمرغۍ شپې ژړا د سپېرې ببدیا باران دی.

"فرانسواکوپه"



که رانه ستوري په تیاره کې ځلېږي، د اتلانو ریښتینې کره وره او اخلاق هم د هغوی په ناڅاپي غمونو او بدمرغیو کې ځان څرګندوي.

"اسمایلز"



اسمان لرې، ځمکه سخته.

"پښتو متل"



سختي او غمونه د انسان عقل و پوهه بډایوي.

"ناپلیون"



مېړني د بدمرغۍ او سوکالۍ په دواړو شپو کې ځان نه هېروي.

"ارستو"

خپل دردونه د خپلو کالیو غوندې په بې پروایي وزغمئ.

"شیکسپیر"



ماته د انساني دردونو لویوالی ګران دی.

"مارتین"



اوبواخیستی څک ته لاس اچوي.

"پښتو متل"



بدمرغي دا نه ده چې انسان سوکاله او بریالی نه وي، غم دا نه دی چې څوک په بېوزلۍ او درد اخته وي، همدا دردوونکې او غمجنې پېښې دي چې انسان کلکوي او لرلید ورپېژني.

"دانیال"



دردوکړاو د بدمرغیو سرچینه ده، خو ما په خپله سوکالۍ کې رڼا ترې اخیستې، هو! دردوونکې پېښې هغه کوره ده چې زما د وجود سره زر ابشوي او په سوچه زرو یې بدلوي.

"راسکین"



سختۍ او ستونزې هغه استاد دی چې د نړۍ ستر نومیالي یې شاګردۍ ته ملاتړي.

"اسمایلز"



تر هغه به بل بدمرغه نه وي چې هېڅکله په بلا او بدمرغۍ نه دی اخته شوی.

"جرمی تیلور"



د نړۍ بدیو ته یوازې د عقل و پوهې له کړکۍ مه ګورئ، د احساساتو، بښنې او تېرېدنې په سترګو هم ورته ګورئ.

"موریس مترلینک"



هغه څه دي چې ژورو بشري افکارو ته وده او پراختیا ورکوي؟ پوهه نه ده! ورتیا نه ده! زوک عواطف و احساسات هم نه دي! یوازې درد و رنځ دی چې د انسان تل ته ورننوځي او کېدای شي همدا لامل وي چې درد و رنځ په نړۍ کې ډېر هم دی.

"هبز"



هغه سترګې چې له اوښکو نه ډکې دي په پېل کې ښه نه ویني، خو داسې سترګې د مهال له تېرېدو سره تر هغو چې هېڅکله یې غم و درد نه دی لیدلی ښې رڼېږي او دلریو ځایو دلیدو ورتیا مومي.

"تماس براون"



بدبختي او ناچاري یو لوی ککوین (ذره بین) دی چې انساني تېروتنې او نیمګړتیاوې سل وزر ځله لویې ښيي.

"دشتي"



په دې نړۍ کې د پورته ټک له پاره هر مخلوق یوې زینې ته اړ دی، دا زینه همدا درد و غم دی.

"اناتول فرانس"



څلور شیان ستړیا راولي: لټ تازي، سوړآس، ناپوه مشر، شنده ښځه.

"آیرلنډي متل"



په ښېدیا کې له داړې سره مخامخېدل ښه دي، نه له ناپوه سره په ښکلې مانۍ کې.

"سنسکریت متل"



انسان تر هغې ځان نه پېژني چې بدمرغه شوی نه وي.

"آلفرد دوموسه"



دومره ماتې مې وخوړله چې د ماتولو لار مې وپېژنده.

دردونه او ستونزې د انسان پوهه ډېروي او د پښتو توپانونه اروا ته پیاوړتیا وربښي.



بدمرغي عقل و پوهه روزي.

"ویکتورهوګو"



اوبه چې تر سر تېرې شي څه یوه نېزه څه سل.

"پښتو متل"



# ښکلا

ښکلا ښاغلې مېلمنه ده، چې هرځای ته لاړه شي په درناوي يې هرکلی کېږي.

"ګوېته"

❂❂❂

که دبدرنګۍ خبره نه وي، پيته پزه هم خپله دنده پرځای کولای شي.

"پوهاند ډاکټر زيار"

❂❂❂

ښکلا له ښکاره کېدو سره اړه لري.

❂❂❂

ښکلا هغه ده چې انسان پرې ښاغلی شي.

"مېرمن ستاهل"

❂❂❂

خوږ ختکی د موږک خوراک شي.

"دری متل"

❂❂❂

ښکلا، ښکلا راکاږي.

"هانت"

❂❂❂

ښکلا مه پېژنئ.

ميلتون

چې ګلان يې وېشل. سور ګل اغزي ته ورسېد.

"تورکي متل"

ژوند چې ښکلی نه وي، ښه ورته نه شو ويلای.

❁❁❁

نه هر ښه ښکلی دی، نه هر ښکلی ښه.

❁❁❁

ښکلا تاريخ بدلوی، که د کليو پاتراپزه کړه وي، تاريخ به بل خوا مخه کړې وه.

❁❁❁

بې ښېګنې ښکلا بې بويه ګل دی.

"ويکتور هوګو"

❁❁❁

ښکلا د نورو له پاره شتمني ده.

"بيسيون"

❁❁❁

هماغسې چې سخته لوږه هر خواږه خوندوروي، په ځوانانو کې د غريزې سرغړونه هم هره ښځه هغوی ته ښکلې ښکاروي.

"ذشتي"

❁❁❁

ښکلا انسان له لانجمنې نړۍ نه راباسي او د خپلواکۍ او سوکالۍ جنت ته يې بيايي. ښکلي صنايع او هنرونه د نړۍ له تنګي نه د اروا د تېښتې لار ده.

"محمد حجازي"

❁❁❁

ښکلا يوه بې پايه بېديا ده چې له ګرځندوی نه لار په کې ورکېږي، خو چې هرې خوا ته مخ واړوې جنت به ووينې.

"هالينډي شاعر"

❁❁❁

د ښکلا يادګار چې په اروا کې ځای ونيو، بيا هېڅکله له منځه نه ځي، يوازې يوه وړچاپېريال ته اړتيا ده چې ياد يې بيا راژوندي کړي.

نازینه د مېرمنو مخ ګوري نه کالي.

"ډیل کارنګي"



شاعران، انځورګر او د موسیکۍ لویان د ښکلا غني دي، خپله په اورسېزي او مور چې له دغه تناره نه لرې یو په ښکلې تودوخه یې تودېږو.



د پیمخې کوربه شراب خواره وي.

"روسي متل"



چې لمر ځلېږي، سپوږمۍ ته اړتیا نه شته.

"روسي متل"



بدرنګي د ښځې ساتندویه ده.

"عربي متل"



ناپلیون د نومیالي ستور پوهاند "لالند" ښځې ته داسې لیکلي وو: "زما په اند لوی خوند په دې کې دی چې سړی له یوې ښکلې ښځې سره تر ستوریو ډک آسمان لاندې شپه تېره کړي.



یو ښکلی مخ مې دومره پاروي چې په نړۍ کې تر هغه بل اوچت خوند نه پېژنم.

"میکلانژ"



ښکلا د مینې مور ده.

"انګرېزي متل"



ښکلا د لیدونکي په سترګو کې ده.

"انګرېزي متل"



ښکلا د زوایدو تورل دي.

"میکلانژ"

ښکلا تر ټولو ښه لارښوونه ده چې د ښځې پر تنده لیکل شوې.

"ارستو"



خره ته یې ګل ونیو، هغه وخوړ.

"پښتو متل"



ښکلې د خدای هم خوښ دی.

"پښتو متل"



# مینه

مینه سترګې ړندوي او غوږونه کڼوي.

"حضرت محمد ص"

❁❁❁

خوربدل د مینې لومړنې خواږه دي.

"موریس میترلینک"

❁❁❁

ژوند خوب و مینه خوب لیدل دي.

"موسه"

❁❁❁

د دو مینو یوځای کېدل او بېرته بېلېدل د ژوندانه دوې ارزښتمنې شېبې دي.

"وېلتر"

❁❁❁

مینه تر هرې ربښتیا ربښتینې ده.

"بارلبي"

❁❁❁

نړۍ له خپل مین نه تښتي.

"ایټالیایي متل"

❁❁❁

په یوه مینه کې په زرګونو بدمرغۍ شته.

"عربي متل"

یوازېنی ناروغي چې ناروغ خوند ترې اخلي مینه ده.

"اپلاتون"



مینه یو کړاو دی، خو هغه چې نه یې لرې مړ دی.

"شکسپیر"



مینه د جګړې غوندې ده، پیل یې اسان خو پای یې ګران وي.

"هـ. ل. مېکن"



مینـه پیـاوړی اوردو دی، پـه یـوه شـېبه کـې زړه او مـاغزه تـر برید لاندې نیســي.

"وېلتر"



زوړ چې مین شي، ډېرته زلمی شي.

"برناردشاو"



چې زما پر زړه لیکلي، څه پاچا څه لنګ وهلی.

"پښتو متل"



د دوو مینو په بېلتانه تیږې هم ژاړي.



د بشر تر ټولو ستره قرباني د مین له لاسه ورکول دي.

"شوپنهاور"



انسان کله، کله دومره مینه کوي چې مینه هم تر پښو لاندې شي.

"پل ادم"



مین نر و ښځه هرومرو یو بل ته رسېږي که د ډلې په منځ کې هم وي.

"اتبانوي"



ښځه تل د نر مینې ته ګوري، څکه نو چې کله نر ښځې ته د مینې خبرې کوي، کوم نوي څه نه ورته وايي.

"اندرې پونیه"

ترهغې چې نر بې پروا وي، ښځې ته ستر و ښاغلي ښکاري او پوره هڅه کوي چې لاس ته يې راولي، خو همدا چې له نر نه يې مينه وليده، کلکزړې او بې مينې شي؛ جګ لوکوي او په نر پورې خاندي.

"دشتي"



مينه په خندونو او ربړو کلکېږي.

"رومان رولان"



د مينو زړونه ډېرنري وي، په يوه وړه نغوته (اشاره) يا خوښ شي يا غمجن.

"ژوزوف بلاوان"



مينه د نړۍ جوړوونکې ده.



د مينې پيوند په بېلتانه څه چې په مرګ هم نه شلېږي.

"وېلتر"



هرڅوک د بل مينې ته لېونتوب وايي، خو په خپله هم له يوڅه نسره مينه لري.

"محمد حجازي"



مينه له ټولو وړو سردرديو نه يوه لويه سردردي جوړوي.



مينه تر واده خوږه ده، لکه رومان چې تر تاريخ خوږ دی.

"يولتر"



کېدای شي نارينه په لومړي ځل ليدو په يوه ښځه سر تر پايه مين شي، خو ښځې چې د نارينه شتمني ونه ګېري نه مينېږي.



مين د هېچا په عقل و پوهه خپل لېونتوب نه ورکوي.

محمد حجازی

هره ښځه چې ساته ګرانه وه، زه يې نه خوښېدم او د هرې ښځې چې زه خوښېدم زما نه خوښېده. په رښتيا چې زما زړه د نورو غونډې نه دی.

"ناپليون"



مينه چې په اوښکو ولمبول شي، تل به پاکه او ښکلې وي.

"شيکسپير"



د ښځې مينه هغه پانګه ده چې سل پر سلو ګټه ونه کړي؛ چا ته يې نه ورکوي.



اندېښنې، خوبونه، آهونه، هيلې او اوښکې له مينې نه، نه بېلېدونکې توکي دي.

"شيکسپير"



خدای بختورو ته داسې زړه ورښي چې د مينې او سوې وروي. هغه چې د ژوندانه پېښې او انساني زړه يې د مينې او درد په دوه مخې هنداره کې ليدلي نه وي، رښتينولي يې نه ده ليدلې او له نړۍ نه ناخبره دی.

"ويکتور هوګو"



په لومړنۍ مينې! ستا ياد ډېر خواکمن دی چې تر کلونو بېوزلۍ او خوارۍ وروسته لاهم زما زاړه، زړه په غورځنګ راولي.

"شاتوبېريان"



که نن يوې ښځې درته وويل چې "نه" داده اوسه، سبا به درته ووايي چې "هو" اودهمدغو دوو ټکيو تر منځ ښکلې شېبې "مينه" ده.



په مينه کې تينګار زموږ کمزوري ښيي، نه ځواک.

لاروشفوکلا



مينه او ساړه نه پټېږي.

"بنيامين فرانکلين"

خدای انسان ته د مینې په نامه وازره ورکړي چې ده ته پرې وروالوزي.

"میکل آنژ"

***

مینه هغه پېرى دى چې ټول يې خبرې کوي خو هېچا نه لید.

"شوپنهاور"

***

په خوب و مینه کې هرڅه پېښېږي.

"هنګري متل"

***

د مینې کتاب مې په خیر ولوست، د خوښۍ مخونه په کې لږ وو نورې ټولې پاڼې یې غملړلې وې.

"ګوېټه"

***

انسان ته ښايي چې تل مین وي، همدا ده چې نر دې واده نه کوي.

"سکاروایلډ"

***

ژوند خوب دی او مینه خوب لیدل.

"الفرد دوموسه"

***

مینه اروا پیاوړې کوي او زړه ژوندی ساتي.

"توماس مان"

***

د مینې درومان لیکوال نر او اتله يې ښځه ده.

"هـ - ج ویلز"

***

د مینې کروندګر د اوښکو لوګری دی.

"پلیني"

***

مینه نرۍ جوړوونکې ده.

"هزید"

هیله د مینې امسا ده.

"ناشناس"



په بې مینې واده کې بې واده مینه ورننوځي.

"بینامین فرانکلین"



مینه، درد و توخی نه پټېږي.

"پرانسی متل"



د هیلې یوه کوچنی سپرغۍ د مینې غټ اور بلوي.

"ستاندأل"



مینه د ژوند لارې ډېوه ده.

"رابیندرانات ټاګور"



که ځان غواړې مینه ګرانه ده، که له ځانه تېر شوې اسانېږي.

"جامي"



د مینې لارې ببلې، خو موخه یې یوه ده.

"آبل آرمان"



د خپل زړه پر وره مې ولیکل: "ننوتل بند دي" خو مینه په خندا راننوته او ویې ویل: "زه نالوستې یم!"

"هربرت شیپ من"



مینه د ښځې او نر تر منځ اوږده جګړه دی.

"کلودفادو"



مینه د ښځې او نر تر منځ جوړښت ده.

"مېرمن دواشتال"



یوازې مینه د انسان برخلیک ټاکي.

"مایسون"

د مینې په لار کې د عقل پښې ماتېږي.

"میترلینک"



مینه تلپاتې سوکالي ده.

"ژرژساند"



هغه چې مینې ته برید تاکي، په مینه نه پوهېږي.

"الکساندر پوشکین"



بې مینې ژوند نه کېږي.

"اپلاتون"



مینه داسې بلا ده چې ټول یې غواړي.

"اپلاتون"



مینه او مینېدل له هر چا نه شاعر جوړوي.

"اپلاتون"



په مینه او جګړه کې هرڅه پېښېږي.

"اروپایي متل"



# مور

چې مور دې نه وي په پلرګنې، هورې ولې ځې لېونې.

"پښتو متل"



په مورنۍ مینې! چې تر ټولو مینو سپېځلې يې، زمونږ څمکنۍ ژبه ستا د اسماني لويوالي د ستاينې ور نه ده.

"و. هاروف"



چې مور يې درخانۍ وي، لور به يې ښاپېرۍ وي.

"پښتو متل"



د ملت پر مخنګ او د هېواد ودانۍ ته ترګې شمېر نورو لوښيو، ښو او روزونکيو میندو ته ډېر اړ يو.

"ناپيليون"



هغه چې د زانګو پړی يې په لاس کې وي، تر هغو چې د حکومت واګې ورسره دي، خورا اغېزناک دي.

"اسمايلز"



د ایران پاچا به په رسمي یا نارسمي غونډو کې چې ډوډۍ به یې
خوړله، د خپلې مور تر لاس لاندې کېناسته.

"پلوتارک"



چې مور فاسده شي تولنه فاسدېږي.

"اسمایلز"



ګرانې مورې! کله چې د یادونو په کوټو د ژوندانه د کتاب پاڼې اړوم او شاته ځم، ستا نوم ډېر مخې ته راځي، کله داسې ځای ته هم ورسېږم چې ستا له نامه پرته بل هېڅ نه وي.



مور د حق ځرګندېدل دي، د هغې خوښي د خدای خوښي ده،
ښایي خدای خوښ وساتو.



ښه مور د طبیعت شاه کار دی.

"ګرتوي"



چې سل یې نوروي، یو به یې د مور وي.

"پښتو متل"



مور اسماني پرښته ده چې خدای د انسان په ښه رالېږلې.

"دومیستر"



هغه بېلګه چې تل د ماشوم په سترګو کې وي، مور ده.

"اسمایلز"



ماشوم هرڅه له مور نه زده کوي.

"ناپلیون"



مورې! ته به پر تلپاتې اسمان د سپېځلې ستورې غونډې تل ځلېږې.

ایمرمان

يوازې يوه مور د ګرانښت و سوکالۍ په مانا پوهېږي. په نارينه هې ډېر زړه سېزي چې مورنۍ سوکالي پېژندلای نه شي.

"شامپسو"



مور په يوه لاس زانګو او په بل نړۍ خوځوي.

"ناپليون"



چې مور ميره شي، پلار پلندر شي.

"پښتو متل"



يوه ښه مور تر سلو ښوونکيو او استادانو غوره ده.

"ژرژهربرت"



زه پينځه دېرش کلن شوی وم، خو مور مې هېڅکله کور ته زما تر راتګ دمخه ويده شوې نه ده.

"اناتول فرانس"



ارمان به کړې هلکه، بيا به نه مومې ادکه.

"پښتو متل"



# موسکا

هغه ورځ چې خندلي مو نه دي ئې ځایه تېره شوې ده.

"شانفور"



له ژوندانه سره په جګړه کې تر ټولو ښه وسله موسکا ده.

"اناتول فرانس"



موسکا تریوې شیبې ډېره نه پایي خو یاد یې ټول عمر پاتې وي.

"دیل کارنګي"



د خوارانو موسکا د شونډو او غاښونو له دایرې نه تېرى نه کوي.

"امیل زولا"



هغه پټه موسکا چې د یوې پیمخې ښځې پر ښکلیو شونډو خپرېږي د شعر تر یوه دیوانه ډېر، اعصاب لړځوي.

"دشتي"



د انسان پرمخ به هر ور په یوه موسکا پرانیستل شي.

"فرانکلین بنګر"

ځینې موسکاوې تر ژړا اغېزناکې دي.

❁❁❁

موسکا لګښت نه لري خو ګټه یې ډېره ده.

❁❁❁

موسکا داسې روپۍ ده چې د خپل وپردي زړه پرې رانیول کېږي، خو ډېر یې ارزښت نه پېژني.

❁❁❁

زړه د وجود تر ټولو ښکلې همیانۍ ده، هغه ډالۍ چې له دې همیانۍ نه نورو ته ورکول کېږي "موسکا" نومېږي.

❁❁❁

څومره چې د وګړیو اړتیاوې لږې کېږي، هماغومره یې پر شونډو او خوله مالګینې موسکاوې او د خندا څپې خپرېږي.

❁❁❁

خندا په روغ زړه کېږي.

پښتو متل

نر ته نړۍ یوه مسوکا ده او یوه موسکا ښځې ته ټوله نړۍ.

❁❁❁

چې پر شونډو مو موسکا راشي، لکه د انسایت کالي چې اغوندئ.

ویلیام شتین

یوه ورځ امریکایي هنرمن "چارلي چاپلین" د خپل زړه د ناروغۍ له کبله ډاکټر ته ورغی. ډاکټر د هغه تر کتلو وروسته ورته وویل: ته یوازې په خندا او خوښۍ روغېدای شې، نو که زما منې د چارلي چاپلین خندنۍ (کومیډي ننداري) وګوره چې ودې خندوي.

چارلي وویل: وبښئ، چارلي چاپلبن زه په خپله یم!

❁❁❁

د پاچاهانو ځاځ (غوسه) او د ښځو موسکا د تورې تر تېرو تېره دي.

اسپانیایي متل



# ښځه او کورنی ژوند

هغه په خپله ښځه ډېر بې باوره وي چې په خپل ځان باور نه لري.

"ناپيليون"



ناوړه ودونه له وربښمينو ټوټو سره دوړينو ټوټو د ګنډلو غوندې دي، چې په پای کې به وربښم وړی غوټې کړي.

"بالزاک"



که ښځه نه وي، اتلان به چا روزلي وو؟!

"ناپيليون"



که نر و ښځه يو ډول روزل کېدای څواک به يې يوشان و.

"مونتسکيو"



که ښځې د ټولنې قوانين تر پښو لاندې کوي، پروا نه شته، ځکه چې دا قوانين نرانو ليکلي دي.

"مونتن"



ماته هغه ښځه ګرانه ده چې مينه ناکه او خواخوږې وي.

"شيکسپير"



په نړۍ کې دوه شيان ښکلي دي: ښځه او ګل.

"مالرب"

که د ښځې ښکلا نه وی، هېڅه به ښکلي نه وو.



ښځه د کاله ډیوه ده.

"حضرت محمد ص"



ښځه تر هرڅه اغلې او ښاغلې ده.

"کنفوشیوس"



ولې د واده خوندونه پرېږدئ او په هغه لېونتوب کې ډوبېږئ چې ځواني یې "مینه" بولي.

"شاتوبریان"



ښه ښځه هغه کلکه امسا ده چې مېړه د ژوندانه په کړلېچونو کې تکیا پرې وکړي او په بدمرغۍ او بېوزلۍ کې یې له مینې او غمخورۍ نه ډاډ تر لاسه کړي.

"اسمایلز"



هرڅومره چې د جوړې د تاکلو موده لنډه وي، د پاتې ژوندانه خواشیني به اوږده وي.



بده ماندینه کړه لښته ده، ماته به شي، سمه به نه شي.

"پښتو متل"



دوې ورځې د نارینه د خوښۍ وي: هغه ورځ چې واده کوي او هغه ورځ چې خپله مېرمن خاورو ته سپاري.

"ویکتور هوګو"



د واده له پاره هغه ښځه وټاکئ چې که نارینه وای په دوستۍ به مو منلې وای.

"برودن"



واده د بادام زړی دی، چې وېې نه خوري، پوه به نه شې چې خوړ دی که تریخ.

❁❁❁

مور نارینه کـه هرڅومره ګران، پاخـه، پـوه او ټینګ اوسـو، بیـا هـم ښځې او د هغـوی دوه مخـې اروا لوبـې راباندې کـوي.

"دشتي"

❁❁❁

واده یو پیوند دی یا به ښه مېوه ونیسي یا بده.

"ویکتور هوګو"

❁❁❁

د ښځې توپیر له نر سره دا دی چې یا ډېره ښه وي یا ډېره بده.

"ناپیلیون"

❁❁❁

کونډه چې ځان سینګاروي، زړه یې مېړه غواړي.

"خوشال خان خټک"

❁❁❁

ښځه د مېړه نېکتایي ده، ښه ښکاري خو سا بندوي.

❁❁❁

هغـه ښځه چې لـه بـې مینـې مـېړه سـره واده وکـړي، د بداخلاقـی نیمه لار یـې وهلـې ده.

❁❁❁

نـاوړه زوی شـېږمه ګوتـه ده کـه پـرې کـوې یـې درد کـوي او کـه ساتې یې بـده ښکـاري.

"نوذرشهریار"

❁❁❁

ښځې خپلې نیمګړتیاوې په تیلیسکوپ او د مېړه په مایکروسکوپویني.

❁❁❁

د واده ګوته د ښکېلاک د زنځیر لومړی کړی ده.

❁❁❁

واده له مینې او سرکه له انګورو جوړېږي.

❁❁❁

بچـي د سـولې د تـړون غونـدې دی، سـره لـه دې چـې دواړه اړخه ترې ناخوښه وي، خو هـرو، مـرو بـه یـې درنـاوی کـوي.

مخکې تر واده پوره سترګې پرانيزئ، خو وروسته ترهغه نيمې.

⁂

له مېړه سره د ښځې تاوتريخوالی تل د يوې نوې غوښتنې سريزه وي.

⁂

عيسی عليه السلام يې وپوښته: ولې نه غواړې چې بچي ولرې؟ ويې ويل: زه هغه چا ته څه اړتيا لرم چې: "ان عاش کدني وان مات هدني"

⁂

هغه چې له واده نه ډډه کوي، ژوند يې د چوپتيا او سرګرځون په نړۍ کې تېرېږي. داسې سړی نه پوهېږي چې کېداى شي له همېشې امله يوه نجلۍ بدلمنۍ ته اړ شي.

"برناردن"

⁂

هغه واده ته چې د بل په سترګو او خوښه ترسره شوی وي؛ غاړه اېښودل دوزخ دی.

"شکسپير"

⁂

هغه ښځې چې بې مينې واده کوي، وروسته مينېږي او طلاق اخلي.

⁂

زوی ته چې دې کله وغوښتل ښځه وکړه، خو لور ته دې چې کله وکړای شول مېړه کوه.

"بنيامين فرانکلين"

⁂

د ښځې ستره ښېګڼه له خپل مېړه سره مينه او رښتينولي ده.

"سه کور"

⁂

سختی او ستونزې د کورنـي ژوندانـه د ازمېښت تـر ټولـو ښه وسيله ده، څکه رنځ و کړاو د نر و ښځې رښتيني اخلاق رابرسېروي.

"اسمايلز"

⁂

داسې ښځه مې ده چې خوښي رابښي او له مېوو ډکه ونه مې ده.

"هاردر"

ناپیلیون په رووستي لیدنه کې خپلې مېرمنې ته وویل: ژوزفین! ما د ځمکې پر مخ هماغومره واک و ځواک لاره چې یو انسان یې لرلای شي، سره له دې هم، دا شبېه یوازې همدا ته یې چې زړه مې تکیا درباندې کړای شي او بس.



ښځه تر ټولو وروستی او ښکلې آسماني ډالی ده.

"میلتون"

که نیم اسمان د نرو وي، نیم د ښځو دی.

"ماووځوتونګ"

ښځه لکه سمندر خورا کوچنې او سپک فشار ته نه ټینګېږي، خو ډېر درانه بارونه پورته کوي.

"رایموس"

ښځه هغه پرښته ده چې په ماشومتوب کې مو پالنه کوي، په ځوانۍ کې مو هیلو ته رسوي او په زړښت کې داد رابښې.

"آره تسن"

ښځه هغه لړم دی چې چیچل یې بد نه دي.

"حضرت علیؑ"

ښځه د نر امېل دی، پام کوه چې غاړې ته څه اچوې!

"حضرت صادقؑ"

چې ښځه نه وي او د موسکا رڼا یې د ژوندانه تیارې روښانه نه کړي، ټولې خوښۍ به مړاوې او ښکلاوې به یې خونده شي.

"دشي"

ښځه سیوري ته ورته ده، که ورپسې شې تښتي، که ترې روان شې درپسې شي.



ښځه هغه کتاب دی چې یې مېنې نه لوستل کېږي.



ښځه هغه هینداره ده چې مرور مخونه موسکي او زړې څېرې ځواني ښیي.

ښځه د اوبو غونډې ده چې له ډېر پوستوالي که په هرچا پېریال کې ولوېږي د لوښي بڼه غوره کوي، هر مېړه چې له خپلې ښځې مرور دی، نیمګړتیا دې په خپل ځان کې ولټوي.



ښځه تاج دی.

"هرود"



یه ځمکنۍ پرښتې! یه زړه وړونکې اسماني ډالۍ! ته یوازینۍ لمر یې چې زموږ ژوند روښانولای شې.

"لامارتین"



ښځې! غوارم خپل ټول شته ستا پښو ته وشیندم.

"شکسپیر"



ښځې ! ته د سپېڅلتیا له پاره رالېږل شوې یې.

"جونسون"



ښځې! ته پرښته یې خو خپلواکه نه یې، ځکه چې تر پرښتې پورته ځای لرې.

"رایترج"



ښځه د خلقت (زېږندویې) د رازونو خزانه ده.

"کارل کوتزکو"



یوازې همدا ښځه ده چې د سپېڅلې مینې رښتینولي پېژني.

"شیکلر"



ښځه ژور ویني او نر لرې، نرې د نر له پاره یو زړه دی، او زړه د ښځې له پاره ټوله نړۍ.

"ګرابه"



ښځه له رازونو داسې ډک زړه لري چې هېڅ ژبه یې سپړلای نه شي.

"ستوري"

په ښځه کې داسې راکښون دی چې نیمګړی عقل پرې نه پوهېږي.

"اسیون"



ښځه سپوږمۍ ده چې په اسمان کې زموږ پر سر خپلواکه ګرځي او هر ځای ته چې ځي نړۍ ته رڼا وربښي.

"الکساندر پوشکین"



ښځه که منلې وي د خدای پېرزوینه ده او که نه آسماني بلا.



ښځه اور دی چې نر له لرې تودوي او له نژدې یې سېزي.



ترځینې ښځې تود پیتاوی ښه وي.

"پښتو متل"



ښځې د کب غوندې هوسا لاس ته راځي خو په سختۍ ساتل کېږي.



هغه ښځه چې په زړښت کې سپېڅلتیا غوره کړي، خدای ته هغه څه وړاندې کوي چې شیطان ته یې له ښنلو شرمېږي.



ښځې د ماتې په شېبه کې هم د جګړې تاوان غواړي.



مېرمنې یوازې د دې له پاره غوښتنه نه مني چې بیا په کلکه غوښتنه ترې وشي.



ښځه داسې متروکه ده چې خورا بېلارې نارینه هم لارې ته راولي.



که غواړئ چې د یوې ښځې اخلاقي زوړتیا و ازمېئ، پر وړاندې یې یوه ښکلې مېرمن وستایئ.



ټولې ښځې څنډ باورې دي، پرته له هغې شېبې چې د چا له خولې نه خپله ستاینه واوري.



که یوې ښځې درته وویل چې: "نه بابا! اوس له مانه تېره ده" پوه شئ چې زړه یې غواړي، نو سملاسي د اعتراض په لټه کې شئ.

د ښځې زړه داسې ګړنګ دی چې هېڅوک ې تل پېژاندلای نه شي.

❁❁❁

د ښځې تر ټولو ځواکمن ساتندوی بدرنګي ده.

❁❁❁

د ښځې کاته تر قوانینو زورور او اوښکې یې تر شرعي ځواکونو اغېزناکې دي،

"ویلتر"

ځینې ښځې د کاغذي ګلانو غوندې دي، چې ورنېژدې شې او بوی یې کړې هېڅ مو نه خوښېږي.

❁❁❁

د کب لکۍ او د ښځې زړه ساتل ګران کار دی.

❁❁❁

یوې بوډۍ مېرمنې د نارینه وو لېونتوب ته درې ځله داسې ګوته ونیوه:

لومړی- پر مرګ پسې جګړې ته ځي او یو بل وژني، خو که تم شي ټولو ته به مرګ په خپله راشي.

دویم- پر مېوه پسې ونې ته خېژي یا یې پرځمکه راغورځوي خو که ډېل وکړي مېوه به په خپله راولوېږي.

درېیم- چې تر پورتنیو دوو، ستر لېونتوب دی او هغه دا چې پر ښځو پسې منډې وهي خو که ځان ټینګ کړي ښځې به پر دوی پسې راوځغلي.

❁❁❁

که د ښځې زړه د سینې د پټو پردو تر شا ټوپونه ونه وهي او دا زړه راکښونکې په خپل مخ، سترګو او کتلو کې ښکلا ونه ښیي، د نر فکر به خپلواک، سوکاله او آرام وي.

❁❁❁

ښځه هغه ژوی دی چې اوږده وېښته او لنډ فکر لري.

"شوپنهاور"

❁❁❁

د ښځو نه عقل خوښېږي او نه پخه مېوه.

"بالزاک"

ښځه د سره ګل غوندې ده، چې مړاوې شي ژر رژېږي.

"شکسپیر"

کېدای شي بې ښځې ژوندي پاتې شو خو ژوند نه شو کړای.

"فریدریک رینولد"



ښځه هېڅکله نـه وایـي چې راتـه ګران یې! خـو کـه لـه تانـه یـې وپوښتـل چې زه درتـه نـه یم ګرانـه؟ پـوه شـه چـې د هغـې پـه زړه کـې دې ځای نیـولی دی.



د ښځې بې پروایي د هغې ښکلا ډېروي.

"لاروشفوکولد"



دوې ښځې د دې لـه پـاره ملګرتیـا کـوي چـې لـه دریېمـې سـره دښمني وکـړي.

"آلفونس کار"



دا لا ښځه کمزورې ده چـې نـر یـې پـر دې ورځ اختـه کـړی، کـه زوروره وای څه بـه یـې کـول؟



د ښځې وهل که د ګل په څانګه هم وي؛ ښه نه دي.

"مانو"



هېندوانه او ښځه له لرې نه نه پېژندل کېږي.

"پرانسي متل"



د ښځو پرمخ داسې پوړنی دی چې څو ګیلاسه شراب به یې ترې وغورځوي.

"پرانسي متل"



د ګرانـښت وړ او پـر زړه پـورې ښځه هغـه ده چـې ټول یـې وینـــي، له همدې امله ده چـې هـنرمنې ښځې هـرچـا تـه ګرانـې دي.

"بالزاک"



ښځه د ګل غوندې ده چې په بویولو څه ترې نه کمېږي.

"سعید نفیسي"

ښځه هماغه ماشوم دی، خو لږ څه غټ.

"کلیویول"

❁❁❁

که لـه شـتمن پـاتکي څخـه دې ښځه وکـړه، د خپلوانـو پـر ځای بـه بادارن ولـرې.

"کلیویول"

❁❁❁

که غواړئ چې د یوه ملت د تمدن و پرمختګ جاج واخلئ، ښځو ته یې وګورئ.

"ناپیلیون"

❁❁❁

د ښځې ښکلا تر هرې ښکلا اوچته ده.

"فونتنل"

❁❁❁

نارینه قانون جوړوي، ښځې اخلاق.

"کوندورسیه"

❁❁❁

د ښځو دنده د نارینه وو اخلاقي روزنه ده.

"وېلتر"

❁❁❁

ډېره خوښه یم چې نر نه یم، که نه اړ به وم چې له یوې ښځې سره واده وکړم.

"مېرمن دواشنال"

❁❁❁

ښځه خپله مینه تر ځلوښتو کلو پورې پټولی شي، خو کر که یې یوه شیبه هم نه پټېږي.

"ناشناس"

❁❁❁

مینه هغه ناروغي ده چې ښځه یې زېږوي.

"مېرمن دواشتال"

❁❁❁

زما د ټول ژوندانه بریاوې، هڅې، پوهه او ویاړونه له ښځې سره په یوه شیبه مینه نه ارزي.

"وېلتر"

ښځه او هېنداره ژر ماتېږي.

"ایتالیایي متل"



د ښځو غوښتنې برید نه پېژني.

"بوالو"



چوپتیا د ښځې غوره ښکلا ده.

"ساپوکل"



ښځو ته هغه نارینه ګران وي چې پوره مینه ورسره کوي، کـه څه هـم چې د نارینه سر د پنبې غوندې سپین او مخ یې له ګونځو ډک وي.

"ګوري"



د نر ستونزې تر ښځو ډېرې دي او ستره ستونزه یې له ښځو سره چال چلن دی.

"پرانسواز ساګان"



تر ټولو بختور نارینه "آدم" و چې خواښې یې نه وه.

"پل پاریي"



ښځه هم منه ده، هم مار.

"هاینه"



ښځه په نارینه او شیطان په ښځه لوبې کوي.

"ویکتور هوګو"



ښکلي ګلان شته چې د بویولو نه دي او ښکلې ښځې هم شته چې د ګرانښت نه دي.

"هویل"



ښځه له هوښیار نه لېوني او له لېوني نه هوښیار جوړوي.

"محمد علي جمالزاده"

هو! دغه دي ښځې. چې درته ګرانې وي ورته نه يې ګران. چې درته نه وي ګرانې ورته ګران يې.

"سروانت"



يوه وويل: زه له خپلې ښځې دومره ويرېږم چې هرڅه وايي هغه کوم.
بل وويل: زه يې ويلو هم د هغې په خوښه کار کوم.
دريم غږ کړ: زه هېڅکله يې له څه ډالۍ کور ته نه شم تللی.
څلورم وويل: ما له ډاره بيخي ښځه نه ده کړې.

"ګل پاچا الفت"



# هنر

یوازې هنر و ادب دی چې د تحت الشعور ناسپړلې خزانه راسپړي او له شعور سره پیوند ورکوي.

"پوهاند داکتر زیار"

❁❁❁

چې ژوند لاس تر زنې شي، هنر لاسونه رابدوهي.

"واګنر"

❁❁❁

هنر هم د ژوندانه غوندې بې لــه خپلواکــۍ او پرمختــګه بلــه موخه نه لــري.

"بتهوون"

❁❁❁

هنر د قانون له چوکاټه وباسئ او په خپله ښکلې او طبیعي بڼه یې ښکاره کړئ.

"بیزه"

❁❁❁

ترهغې چې د پوهې او هنر په زده کړه کې سیالي ونه کړئ. لوی به نه شئ.

❁❁❁

هنر من په ریاضي نه پوهیږي.

"شوپنهاور"

❁❁❁

خدایه! هنر څومره اوږد او ژوند څومره لنډ دی.

"ګوټه"

پوهه او هنر که په هر ځای او هر ملت کې راوپنځېږي، ټوله نړۍ ترې برخمنېږي.

"پوشکین"



په هنر کې هم د ژوندانه غوندې خپلواکي او پرمختګ دی.

"بتهوون"



هنر یو دښمن لري چې جهالت نومېږي.

"بن جانسن"



هنر خواک دی.

"انګرېزي متل"



هنر یوازې ځان ځرګندوي.

"سکاروایلد"



هنرونه ټول سره ورونه دي، هریو پر بل ورانګې اچوي.

"وېلتر"



پنځ (طبیعت) د خدای هنر دی.

"دانته"



هنرمن ته ښايي چې هنر ځرګند او ځان پټ ګړي، همدا ده.د هنر موخه.

"سکاروایلد"



هنر د رښتینې نړۍ تر څنګ د ایډیالي نړۍ جوړول دي.

"اپلاتون"

هنر د ژوندانه دوډۍ نه ده. خو د ژوندانه شراب دي.

"ریشتر"



هنر د ژوندانه نڅوړ دی.

"پل والري"



هنر د ژوند پوهنې کیلي ده.

"سکاروایلد"



# شعر و موسيکي

خپلو بچيانو ته شعر ورزده کړئ، ځکه چې شعر يې ذهن پراخوي او زړورتيا وربښي.

"حضرت محمد ص"



ادبيات د تمدن او شعر د هيلو پټ راز دی.

"ويکتور هوګو"



د سترو شاعرانو په شعرونو ستر شاعران پوهېږي.

"تورو"

خوشال په ټوله مانا شاعر دی، خو رحمان تر شاعر پورته مقام لري.

"قيام الدين خادم"



رښتينی شاعر د بشر ښوونکی دی.



شاعري اوچت هنر دی.

"کانت"



شعر ويده اروا راويښوي او فکر، رښتيا پېژندلو ته چمتو کوي.

"شلی"

شعر د بشري پوهې يوه برخه ده.

"بيکن"

شاعر د ژوندانه له زهر لړليو شونډو نه شات څښوي.

"ويليام روزبنت"

***

موسيکي خوندور هنر دی، خو څه نه رازده کوي، هغه څه چې د انسان اروا ته خواږه ورکوي او زده کېدونکي دي: شعر نومېږي.

"شللي"

***

شعر چې له موسيکۍ نه بېل شي، وچېږي.

"ازراپاوند"

***

شعر يوا نځور دی چې غږېږي او انځور يو چوپ شعر دی چې شونډه به يې ونه خوځېږي.

"ساموئيد"

***

شعر د اوچت هنر يو ډول دی، له همدغه کبله تلپاتې ښکلا ښه څرګندوي.

"کوزن"

***

شاعران د نړۍ ناپېژندل شوي قانون جوړوونکي دي.

"شلي"

***

لمر ختيځ د شعر د الهي ملکری دی.

"اناتول فرانس"

***

هغه چې په شعر نه پوهېږي په ماغزو کې يې ژمی دی.

"محمد حجازی"

***

بدمرغي به وي که وغواړو چې په اقتصاد و سياست کې هم شاعر واوسو.

خدای شاعر رالېږلی دی.

"چارلز وسلي امرسن"

❁❁❁

بدمرغه او خوږبدلي خلک په خواري او ماتې کې شعر ته مخه کوي او هغه څه چې له غم وکړاوه يې زده کوي، په خپلو شعرونو کې يې نوروته ښيي.

"شللي"

❁❁❁

"دوما" له "روپول" نه وپوښتل چې کومې پېښې شاعر کړي؟ هغه يې ډيله ځواب ورکړ: "کړاو او بدبختي".

❁❁❁

د انسان په ارواکې د موسيکي وزن و نغمه لوی اغېز لري او که سم وکارول شي د ښکلا مانا ورپېژندلای شي.

"اپلاتون"

❁❁❁

هلته چې وينا درېږي موسيکي پيل شي.

"واګنر"

❁❁❁

په ټولو هنرونو کې موسيکي د انسان مينه ډېره راپاروي، د يوه استاد له لاسه يوه ښکلې پارچه پر زړه باندې د اخلاقو تر يوه کتابه ډېر اغېز لرلای شي.

"ناپيليون"

❁❁❁

د موسيکي پوهېدنه او پېژندنه تر هرې پوهې او فلسفې اوچته ده. که چا زما د موسيکي ژوره مانا وپېژنده له ټولو هغو بدمرغيو څخه به چې خلک پرې اخته دي؛ وژغورل شي.

"بتهون"

❁❁❁

موسيکي درانه خو بې خونده غږونه دي، زما، تر خورا زړه راکښونکيو نغمو هم چوپتيا خوښېږي.

"ګوېته

موسيکي هغه هېواد دی چې زما زړه په کې اوسېږي. دلته له هرڅه نه ښکلي ګلان راټوکېږي او هېڅ ناکاره بوټي په کې نه شته. خو داسې خلک لږ دي چې د موسيکۍ په هره بوټه کې پراته شور ته ځير شي.

"بتهون"



په هر شي کې موسيکي شته. خو هغه يې اوري چې تېز غوږونه لري.

"لرد بايرون"



موسيکي د ژبې پيل و پای دی، لکه احساسات چې د پوهې او کيسه چې د تاريخ سر و پای دی.

"واګنر"



موسيکي د غږونو کوږوالی دی، په هغې کې نېغه کرښه د يوه غږ له جوړېدو پرته مانا نه لري.

"علي دشتي"



موسيکي په خپله له خورا پراخ لمنو ښکليو هنرونو څخه ده چې ټول طبيعت په کې ځايېږي او که يوازې هنر ورته وويل شي ارزښت يې کمېږي.

"نيکولايويچ سروف"



موسيکي اوچت هنر دی چې ګڼ شمېر ناپېژندوی او ناڅرګند ټکي راسپړلی شي او هغې نړۍ ته مو بيايي چې انسان تراوسه نه ده ليدلې.

"واګنر"



بشر په ژوندانه کې موسيکۍ ته اړتيا لري. موسيکي د انسان د خېړنې، حيرتيا، پوهې، حس، ليدلو، ارزونې او په پای کې د مينې خواک پياوړی کوي. تاسې يوه شېله اروا زما لاس ته راکړئ، زه به د موسيکۍ په مرسته شدلتوب وتياره ترې لرې کړم او بېرته به يو پوه او مېړنی سړی دروسپارم.

"اپلاتون"



# ليکوالي

جرمنان نور څه غواړي، آيا "ما" نه لري؟

"کوښته"



کېدی شي چې نور کارونه په زور وچلېږي، خو قلم نازک شی دی. پر ده چې زور راشي ماتېږي.

"قيام الدين"



تر هغې چې دا دب قلم زما په لاس کې دی، داغم نه راځي چې د پاچاهۍ تاج مې پر سر نه شته.

"وېلتر"



مطبوعات د نوي تاريخ بنسټ دی، هغه چې د مطبوعاتو د آزادۍ مخه نيسي، د خپل هېواد و ملت تاريخ ته خيانت کوي.

"پوانکاره"



هغه چې غواړي ليکوال شي. لومړی دې ډېر څه زده کړي.

"داربدن"

د هر چالیکنه هغه په خپله دی.

"بوفن"



د لیکلو له پاره ژوند وکړه، د ژوند کولو له پاره مه لیکه.

"ژول رنارد"



د دې له پاره چې ښه ولیکو، یوه ازاد هېواد ته اړتیا لرو.

"وبلټر"



هماغه څه ولیکه چې ستا خوښېږي.

"گوستاوفلوبر"



د ورځپاڼې لیکوال د تولنې څارندوی دی، د دندې مخه یې مه نیسئ.

"مېرمن امیل زولا"



ډېر فکر وکړه، لږ وغږېږه، ښه ولیکه.



هره پوهه چې ونه لیکل شي له منځه ځي.

"حضرت امیر ع"

لیکوال هغه دی چې تیت خلک یورته بوځي.

"عمر خیام"



نننی روښانه ژوند وسمه روزنه د پرونیو لیکوالو د فکرونو زېږنده دی.

"حافظ عفیفی پاشا"



پخوانـي لیکـوال غښتلـي پـاچاهـان دي چـې لا د خپلـو قـبرونو لــه منځه پر مور پـاچـاهي او واکمنـي کـوي.

"پرانسي شاعر"



ورځپانه د فرهنگ د خپروني تر ټولو اسانه لار او د پرگنو د راوینولو تر ټولو ستره وسیله ده.

د هـر هـېواد د ورځپـاڼو د يـــوې کنې پــه لوســـتلو د وکړيـــو خپلواکـي، د حکومـت د بنسټونو کلکـوالی، ملـي ووده، فرهـنگي روزنـــه، فکري ځواک وارواييي پياوړتيـا پـېژنـدلای شـو.



له يوه خونړي لښکر نه چې له زرګونو تکړه سرتېريو څخه جوړ شوی وي، دومره نه ډارېږم، لکه له څلورو ورځپاڼو څخه چې زما مخالفې وي.

"ناپيليون"



په هرځای کې چې ورځپاڼې چوپ شي، د اوښتون (انقلاب) و جګړې اور بلېږي.



هرڅوک په ځانګړي ډول د پرانسې د وياړونو، برم، پرتم و خپلواکی د ساتلو دنده لري، يو يې په توره، بل يې په قلم.

"مېرمن اميل زولا"



پـه زور واکـو هېوادونـو کـې د ټوکـــو ليکـل دومـــره دود نـــه دي، ځکه چوپتيا او ناپوهــي نـه د ليکلـو وړتيـا روزي، نـه يـې اراده.

"مونتسکيو"



د هـر تـېري او زورواکـی سـريزه د فکرونـو مـروړل او د مطبوعــاتو د آزادی مخنيـوی دی، لکـه د هـري غـلا او جنـايت ســريزه چـــې هـــم د خولو تـړل او د مرسـتبولو چيغـو مخنيـوی وي.



هرڅوک له خپلې ليکنې نه پېژندل کېږي.



که ما وپوښتي چې زمونږ په هېواد کې دې يې ورځپاڼې دولت که بـې دولته ورځپاڼه کوم يو خوښ دي؟ زه به وروستی خبره غوره کړم.

"جفرسن"



زه د خپل ټاټوبي بده ورځ د مصر د ليکوالو او تبليغاتو په ستر‌ګو وينم.

"توفيق الحکيم"

د نوميالیو لیکوالو ارزښت دا دی چې هغه څه چې نورو لیدلي دوی څرګند کړای شوي دي.

ژوبرت

❁❁❁

مطبوعات مو ښوونځی، جومات و فکري زېږندوی دی. زموږ د تمدن په ټولو ښنو کې مطبوعات یوه لوښت جګ ولاړ دي او تر هر بل ځواکه مو د ژوندانه ډېره ساتنه کوي.

❁❁❁

هېڅ لیکوال نه شي ویلی چې تېر به نه وځي، یوازې هغوی چې هېڅ کله یې لیکوالي نه وي کړې داسې ګڼي چې لیکوال له تېروتنې بچ دی.

❁❁❁

زما لیکنې به ستاسې خوښې نه شي، خو زه هڅه کوم چې د خپلو فکرونو په ناولي بوی د بشریت د بویولو حس راویښ و پیاوړی کړم.

"مېرمن امیل زولا"

❁❁❁

لیکوال د خپلې لیکنې د اغېز مسوول دی، دخوږو او زهرجنو کرښو پرځای دې ترخې او ګټورې خبرې ولیکي.

❁❁❁

کنځل د تباه کار دلیل دی.

"ژان ژاک روسو"

❁❁❁

سره له دې چې زه د وینا په سیاست ګروهمن نه یم او یوازې وسپنه او اور منم، خو سربېره پر دې هم وایم چې دغو شیطانانو (لیکوال) مې ډېرې شپې له سترګو نه خوب تښتولی دی.

"بیسمارک"

❁❁❁

هغه قلم چې په رښتینواله او نیاو چلېږي، تر هرې وسلې او تورې پیاوړی او تېره وي.

"امیل زولا"

❁❁❁

انګرېزان وایي: سروزیر کېدل د "تایمز" ورځپاڼې تر سرمشرۍ آسان دي.

هغه لیکوال چې په خپله لیکنه کې داسې څه راولي چې د ده اروایې نه مني: ډېر ورکلاری دی.

"اناتول فرانس"



هر مهال چې زما د پلاز (تخت) پښې ورپېږي، زه وایم چې بیا یوه خپلواک لیکوال قلم راواخیست.

"د پرانسې پاچا"



لیکوال د ټولنې څارندوی دی او هر څارندوی چې جنایتویني او سترګې پرې پټوي له ټولنې سره خیانت کوي.



د بریتانیا په سیاسي کړیو کې ویل کېږي چې بریتانیا په هر هېواد کې دوه استازي لري: د حکومت استازی او د "ټایمز" خبرپاڼه، ډېر کله حکومت د ټایمز د خبریال وینا د خپل استازي تر هغې ډاډمنه بولي.



د ښو مطبوعاتو خاوند ښار څارندوی او زندان ته اړتیا نه لري.



هغه لیکوال ته چې خلک ګران نه وي، لوستونکي به هم د هغه لیکنې خوښې نه کړي.

"کولیه"



# وینا

د نر ښکلا ژبنۍ فصاحت دی.

"حضرت محمد(ص)"



ځینې ویناوې جادو دي.

"حضرت محمد(ص)"



چوپتیا د تفکر بڼ دی.

"حضرت علی(ع)"



یا داسې وینا ولره چې زړه یې ومني، یا داسې زړه ولره چې وینا ومني.

"محمد حجازي"



چوپتیا نه تېروځي.

"هندي متل"



یوه اوږده وینا کارونو ته پرمختګ نه ورښيي، لکه یو اوږد کوټ چې په تګ کې مرسته نه کوي.

"تالیران"

له شخړې نه داسې تښته لکه له زلزلې او مار نه چې تښتې.

"دیل کارنګي"



اوربدل زده کړئ او غږېدونکی وهڅوئ چې د ځان په اړه وغږېږي.

"دیل کارنګي"



سوچ کوه بیا غږېږه چې تېر نه وځې.

"حضرت محمد ص"



د یوې سوچه خبرې ارزښت تر دوو سوګندونو ډېر دی.

"امریکایي متل"



انسان د خپلې ژبې تر شا پټ دی.

"تازی متل"



ژبه مه پرېږده چې تر فکر له مخه ګام کېږدي.

"شیلون"



ښکلې خبره وسپنیز ورپرانیزي.

"یوګوسلاوي متل"



د خبرې خوړل د ګېډې درد نه پیدا کوي.

"چرچیل"



یاسم وغېږېږه یا د هوښیارۍ په دود چوپ پاتې شه.

"ژرژهربرت"



دناوړه وینا اوږدول په ویونکي کې د سرېتوب د کمي څرګنده نښه ده.

"ګوستاولوبون"



ترخه خوره، خو ترخه مه وایه.

"پښتو متل"

بد اند یوازې د هغه خاوند ته تاوان رسوي، خو ناوړه خبرې ټولو اورېدونکيو ته.

⁂

که ټول خلک ښه نه شي غړېدای، چوپ خو پاتې کېدی شي.

⁂

هره وینا چې د ځانځانی له مخې وي، غږ به یې یوازې د ویونکي په ټټر کې خپور شي.

⁂

غږېدونکي یې کري، اورېدونکي یې رېبي.

"حضرت علي[ک]"

بې فکره وینا بې موخې غشی ویشتل دي.

⁂

چې ډېر پوهېږي لږ غږېږي، چې لږ پوهېږي ډېر غږېږي.

"ژان ژاک روسو"

⁂

له زړه نه راوتلې وینا پر زړه کېني او له ژبې نه راوتلې هغه له غوږ نه تېرې نه کوي.

⁂

لږ پوهېدل او ډېر غږېدل، روپۍ نه لرل او ډېر لګول دي.

⁂

داسې څه ووایه چې ارزښت یې تر چوپتیا ډېر وي.

⁂

ډېر ویل د پوهې او تفکر مخه نیسي.

⁂

هرڅه چې وایئ، پوه شئ چې چا ته یې وایئ.

"پاسکال"

⁂

ګره م هغه دی چې د ښو خبرو پر ځای د خوښې خبرې کوي.

"دموستنس"

⁂

که وګړي د یوه بل د زړونو په ژبه پوهېدلی، کړکېچونه به نه وو.

⁂

هغوی چې اوچت آند و واند (فکر و خیال) نه لري هڅه کوي چې خپله نیمګړتیا په ښکلیو او غولوونکیو خبرو پټه کړي.

ګوېته

د هرڅه په اړه چې غږېږې فکر کوه، خو هرڅه چې فکر کوې. مه يې وايه.

"هندي فيلسوف"



که پوه شو چې له خولې مو هره وتونکې وينا د يوې تيرې په څېر د دوست و دښمن په ودانۍ کې کارول کېږي، نو هڅه به وکړو چې بې ځايه او بې ارزښته ونه غږېږو.

"ډاکټر مارډن"



چوپتيا پېژندګلوي رابښي.

"راماکريشنا"



د يوه هوډمن وروزلي ځوان په برې کې چې لوړې موخې او غوښتنې ولري؛ پوره ډاډ لرم، خو چې ښه وياند وي.

"جالوشا. ا. ګرو"



يا چوپ اوسه يا داسې څه ووايه چې تر چوپتيا غوره وي.

"فيساغورس"



غږېدل اړتيا ده، اورېدل هنر.

"ګوېته"



تر وينا وروسته چوپتيا ستر ځواک دی.

"پرانسي پوه"



رښتيا وايه او سم غږېږه، د تريخوالي پروا مه کوه.

"انوشيروان"



د يوې ګروهې (عقيدې) ارزښت تاکنه د هغې د رښتينولۍ پر ځای د ويونکې په هغه پوهه پورې تړلې چې د هغې په څرګندولو کې يې کاروي.

"ګوستاولوبون"



چوپتيا تر ډېر ويلو غوره ده.

فاتهوب

په وینا کې د بل پښنې مه کوئ.



ساده او روانه وینا ښه ده، خو د کوڅې او بازار په ژبه نه



سوړ چای او سړې وریجې زغمل کېږي، خو ساړه کاته او سړه وینا د زغملو نه دي.

"چیني متل"



تیره په اوبو کې نه ورستېږي او د ښې وینا اغېز له منځه نه ځي.

"هندي متل"



خپله خوله هم کلا ده هم بلا.

"پښتو متل"



ژبه د تمدنونو تر منځ پول دی.



# مرګ

چې څوک مړ شي، خلک وايي: "شاته يې څه پرېښودل؟" او پرښتې وايي: "مخکې يې څه ولېږل؟"

"حضرت مخمدص"



مرګ مه غواړئ.

"حضرت محمدص"



بې مرګه به ژوند ارزښت نه لاره، ځکه له مرګ نه وېره ده چې دومره يې ژوند ښوښتی او خوندور کړی دی.

"موريس ميترلينک"



مرګ و خوب يو شی دی.

"پښتو متل"



هره زانکو يو ګور دی.

"ويکتور هوګو"



مرګ په ډول و سورنې نه راځي

"پښتو متل"

په ولاړه مرګ تر پلټنې وهلي ژوند غوره دی.

"دولورس اباروري"

❁❁❁

مرګ څه خبره نه ده، ژوند نه کېدل ډېر بد دي.

"ویکتور هوګو"

❁❁❁

د هیلې مړینه رښتینې مرګ دی.

"ناپیلیون"

❁❁❁

تر مړینې بد څه دي؟ هغه څه چې تر راتلو وروسته یې مرګ غواړې.

"ویکتور هوګو "

❁❁❁

وروستی غړی چې د ښځې په وجود کې مري، هغه ژبه ده.

"هندي متل"

❁❁❁

ژوند مو چېرته وپېژاند چې مرګ وپېژنو.

"کنفوسیوس"

❁❁❁

له مرګه مه وېرېږئ، ځکه چې تریخوالی یې په همدې وېره کې دی.

"سوکرات"

❁❁❁

که خپلواک ژوند مو ونه موند، ښه ده چې مرګ ته غېږ پرانیزئ.

"مهاتما ګاندي"

❁❁❁

که مرګ نه وی، ژوند به خوږ و خوندور نه و.

"میترلینک"

❁❁❁

پر هغه کال چې انسان له کاره ولوېږي، ښه ده چې پر بل کال مړ شي.

اډېسن

انسان ټول ژوند زده کړه کوي، خو بیا هم ناپوه مري.

یوګوسلاوي متل

چې هغه دې پرېښوده، ژوند دې هم پرېښود.

"چيني متل"

❁❁❁

مرګ ته زوړ و ځوان يو دی.

"پښتو متل"

❁❁❁

د مرګ پر وړاندې بې پروايي ستره اخلاقي ښېګڼه ده.

"مونتني"

❁❁❁

ژوند هېڅ ته دومره خوږ نه ښکاري، لکه هغه ته چې د مرګ وېره يې له زړه نه ويستلې وي.

"ژورژويلسون"

❁❁❁

مرګ تر زېږېدو سخت نه دی.

"اناتول فرانس"

❁❁❁

که مېړنی ژوند نه وي، مېړنی مرګ خو شته.

"علامه اقبال"

❁❁❁

مرګ په ماړه نس ښه دی.

"پښتو متل"

❁❁❁

تر ټولو بې زړه او ډارن سړی وژل کوي.

❁❁❁

د غټ زړه خاوند ځناور هم نه وژني.

❁❁❁

هغه چې بل وژني هرو، مرو ډېر ترې وېرېږي.

❁❁❁

وژونکي تر وژل شوي بې زړه وي.



# اخځ


۱- سیری در بزرگ ترین کتابهای جهان، حسن شهباز، لومړی ټوک، ۱۳۵۳ کال.

۲- سیر حکمت در اروپا، ویل دورانت، د فروغي ژباړه.

۳- یأس فلسفی، مصطفی رحیمی، ۱۳۵۳ کال.

۴- رسالت روشنفکر در ساختن جامعه، ډاکټر علی شریعتي.

۵- نگارش و تفکر ، د نکهت سعیدي ژباړه.

٦- پوهه او ګروهه، پوهاند ډاکټر زیار

۷- افکار جاوید، غلام رضا واحدي.

۸- څه لیکل یا لیکپوهه، ګل پاچا الفت.

۹- رمز پیروزي مردان بزرگ، جعفر سبحاني ۱۳۴۷ کال.

۱۰- د خوشال خان خټک دیوان.

۱۱- اندیشه های مردان بزرگ، مهر داد مهرین، دریم چاپ ۱۳۴۴ کال دنیل خپروني.

۱۲- پښتو متلونه، محمد دین ژواک، پښتو ټولنه، ۱۳۴۴ کال.

۱۳- رهنمون، غلام حسین ذوالفقاري، انتشارات سخن.

۱۴- ضرب الامثال و کنایات، ډاکټر عبدالغنی برزین مهر، دانش خپرندویه ټولنه، پېښور ، ۱۳۷۸ کال.

۱۵- خیالي دنیا، قیام الدین خادم، پښتو ټولنه - کابل.